# (۲۳) شیخ ملی د «دفتر» لیکوال

دا سړی دپښتنو یو معروف قاید او لیکوال او مؤرخ دی، چه نوم ئې آدم بن ملی دی(۱) خوشهرت ئې په شیخ ملی سره کړی و، د مورخینو په قول دده دپلار نیکه نوم نه دادی ملی بن یوسف بن مندی بن خیبی بن کند بن خرښبون (۲) اخوند درویزه او افضل خان ختك او نور مؤرخین او هم ملی عنعنه دا وایی، چه دشیخ ملی نیکونه دقند هار په ارغسان کښی اوسیده، او له هغه ځایه دوی دننگرهار او پېښور لتوته راغلی دی (۳)، هغه پښتانه تر اوسه هم وایی: چه مونږ له غوړی مرغې څخه راغلی یو، «مرغه» خو هم اوی ځای و، چه اوس ئې یوه برخه په ارغسان او بله په کدنی اړه لری، گویا «مرغه» د کوزك د غره شا وخوا ته ترزو به رسیده.

دغه لښته مؤرخین د مرزا الغ بیگ په عصر کښې گڼی، (۸۱۲ - ۸۵۳ هـ) مگر دا سی ښکاری، چه له قدیمه د پښتنو دغه تگ راتگ شروع و، او بنا یی چه دغه هم ورو ستنی لښته اویون وی. ځکه محمد هوتك کښلی دی، چه د کند او زمند اولاد ولاد مخه په لښته پیل کړی و (٤) زما مقصد دلته داندی چه دشیخ ملی شرح حال مفصل ولیکم، ځکه د(۱۳۱۹ش) په کالنی کښې ښاغلی خادم (ص۳٤٤) او هم د (۱۳۲۰ش) په کالنی کښې ښاغلی رشتین (ص۲٦٤) تر یوه حده دې پښتانه قاید احوال کښلی دی، خو دلته دیوه مؤرخ په حیث دده پېژندنه مقصد ده: وایی چه شیخ دپښتنو احوال او دخپل عصر وقایع، او ددوی دراتگ حوادث او د ملکو وېش په یوه کتاب کښې وکښل، چه د دغه کتاب نوم د «شیخ ملی دفتر» و خوشحال خان دا کتاب داسی راښئی:

په سوات کښې دی دوه څیزه چه جلی دی که خفی
مخزن د درویزه دی، یا دفتر د شیخ ملی

معلومه ده چه د خوشحال خان ترعصره هم دغه کتاب په سوات کښې شهرت در اود، او د مخزن سره ئې په شهرت کښې سیالی کوله.

د ناروی مشهور مستشرق مارگن سترن وایی: چه راورتی (مشهور انگلیسی مستشرق) کښلی دی، چه شیخ ملی خپل دفتر په (۱٤۱۷ع=۸۲۰هـ) و کیښ، او دا کتاب ما مونږلی دی دپښتو ژبی یو خور اقدیم لیك دی (٥) راورتی په پښتو کښې یو مدقق سړی دی، دغه نقل هم له ده څخه بالواسطه رارسېدلی دی، محمد عبدالسلام هم د شیخ ملی د دفتر په خصوص کښې شرحه لیکی، او داسی ښکاری چه ده هم له راورتی څخه استفاده کړېده (٦)

(۱) تذکرة الابرار (۲) حیات افغانی او تاریخ مرصع (۳) تاریخ مرصع، تذکرة الابرار، حیات (٤) پټه خزانه ص ۲۱ قلمی (٥) دهند دزړو آثارو مجله ۱۹۳۹ع (٦) نسب افاغنه ص ۱۱۳

په هر صورت دشیخ ملي ددفتر نسخه اوس ما ته معلومه نده ، چه شته که نشته ؟ خود ونی ویلای شو ، چه تقریبا سل کاله دمخه دغه نسخه له راوړتی ښخه وه ، او په پښتو ژبه یو د پښتنو تاریخ و ، چه دیوسفزو دهجرت حال ئې پکښې کښلی ، او د دوی دمځکو یشونه ئې هم پکښې کړی وه ، اخوند درویزه وایی چه تر دغه وخته دشیخ ملي ویش معتبر دی او تر اوسه څوك څه نشی بکښې کولای (۱) اویوسفزی تراوسه هم ارثی جایداد ته د « شیخ دفتر » وایی .

خلاصه : شیخ ملي دپښتو مؤرخ ، لیکوال ، مشر ، اویو تاریخی سړی ؤ ، چه مدفن ئې په اشنغر کښې دی ، اود مرګ تاریخ ئې تر اوسه ما ته ندی معلوم ، خودژوندانه وخت ئې د ( ۸۰۰ ه ) شاو خوا دی .

## (۲٤) کجوخان رانیزی دپښتنو دتاریخ لیکوال

مارګن سترن مستشرق لیکی چه راوړتی دپښتو د ګشنری په مقدمه کښې کښلی دی چه له دغه خان کجو رانیزی یو پښتو تاریخ شته چه په هغه کښې دپښتنو تاریخی حوادث اووقایع لیکلی دی .

ددی تاریخی کتاب د لیکنی وخت راوړتی (۱٤۹٤ ع = ۹۰۰ ه) ښوولی دی (۲) خو داسی ښکاری چه خان کجو د شیخ ملي تر عصرو روسته دپښتنو مشرؤ تراوسه ددی کتاب په خصوص کښې نور څه معلومات لما څخه نشته خودونی ویلای شو چه په سوات اواطرافو کښې له یوسفزو څخه یو قوم تراوسه رانیزی پراته دی دحیاتخان په قول تراوسه له دغو یوسفزو څخه دریې کورنی مشهوری وی چه یوه له دغو درو څخه ازی خیل دی چه ازی دتلی زوی و او تلی بن رانی بن اکو بن یوسف دی . دازی خیلو دغه مشهوره کورنی ( کاجو کور ) بولی چه پخوا ددوی نفوذ او اقتدار خورا ارت و مګر اوس په پاسنی سوات کښې شپنزره کوره په دوی اړه لری چه د ( ۱۲۸۰ ه ) په شاو خوا کښې ددغی کورنی مشر صحبت خان نو میدی بلځای حیاتخان وائی چه خان کجو دشیرشاه معاصرو (۳) چه دغه خبره هم صحیح ښکاریږی نو دغه مشهور کاجو یا کجوخان دپښتنو یوخورا نومیالی مشرو چه لکه شیخ ملي دعلم څښتن هم و اودده یو تاریخی کتاب راوړتی لیدلی او میندلی ؤ چه اوس متاسفانه ورك دی اوښائی چه دبرطانیا په موزیمو کښې پیداشی ځکه چه دراوړتی ټول کړی کتابونه ترده وروسته ندی ضایع شوی او ا کثرد لندن په موزه خانو کښې خوندی دی .

## (۲۵) خوشحال خان ختك د « تاریخ افغان » لیکوال

مرحوم خوشحال خان ختك د پښتنو هغه نوموړی اوعلامه سردار اومشر شاعر دی چه ښائی داسی پښتون به نه وی چه دی نه پیژنی . دامرحوم دپښتو پلار او د پښتنو یګانه ملي ادیب اوهم

(۱) تذکرة الابرار (۲) دهند دزړو آثار ومجله ص٥٦٦ ج ۱۱

(۳) حیات افغانی ص ۱۷٤ ـ ۱۹۰

نوموړی لیکوال دی مګر دامشهور اومعروف مشر تراوسه دمورخ په دول لنږ پیژندل شوی دی .

خوشحال خان دپښتنو مؤرخ هم ګڼل کیږی ده خپل تاریخی مطالب اود پښتنود تاریخ مهم وقایع پخپل یوه کتاب کښې کښلي وه افضل خان ختك په تاریخ مرصع کښې ډېر مقاصد له دغه کتابه رانقل کړی او وایی چه خان عليين مکان پخپل « بیاض » کښې هسې کښلي دی . (۱)

راورتی مستشرق هم هسې لیکی چه خوشحال خان (تاریخ افغان) لیکلی دی چه او س ډېر نایاب دی (۲) نه پوهېږم چه راورتی هم هغه بیاض چه افضل خان ئې رانیئي یادوی که ئې مقصد یو بل مستقل کتاب دی ؟ په هر صورت خوشحال خان دپښتنو مورخ دی تاریخ افغان یا بیاض دده تاریخی کتاب و .

## (۲٦) حافظ رحمت خان د « خلاصة الانساب » او « تواریخ رحمت خانی » لیکوال

نواب حافظ رحمت خان د شاه عالم خان زوی دمحمود خان لمسی دشهاب الدین کوتابابا کړوسی دی چه اصلاً دقندهار دښوراوك بړېځان دی شیخ شهاب الدین روحانی سړی او دپیښور دیوسفزو مرشد و ، چه تراوسه ئې مزار دسر حدی صوبی په هزاره کښې دی . تر ده ورسته ئې کورنی مشهوره شوه ، او په بد ایون اوبریلی کښې دپښتنو مشر توب کاوه ، اوداعلیحضرت احمد شاه بابا په عصر کښې ددې کورنی مشهور مشر حافظ رحمت خان و ، دی عالم ، فاضل ، لیکوال اوشاعر سړیؤ او په روهیل کهنډ کښې حکمرانی در اوده .

حافظ ر حمت خان د مشهور نواب علی محمد خان افغان ملګری و او دو اړه علمی اوادبی خلق وه ، چه [illegible] ئې ښه روزلی دګر علی محمد په دغه وخت په (۱۱٦۲ ه ) وفات او حافظ رحمت خان ئې پرځای کښېنوست او بدایون اوروهیل کهنډاو نورځا یونه ئې ونیول هغه وخت چه اعلیحضرت احمدشاه بابا هندته ولاړ نو حافظ رحمت خان هروار له ده سره ښه ښه کومکونه وکړه او د احمدشاه بابا رشتین ملګری او مرستی و دبانی پت په جګړه کښې هم دی نو موړی پښتون دخپل ملګری احمدشاه بابا سره ټینګ ملګری وکړه او په (۱۱۸۸ ه) کال په یوه جنګ کښې شهید او په بریلی کښې ښخ شو (۳)

حافظ رحمت خان عالم اوادیب لیکوال متدین اوشاعر اومؤرخ سړی و ده یوه مفصله کتب خانه هم در لوده چه دکتور اسپرینګر مشهور مستشرق دهغو کتابو فهرست په (۱۸۵٤ ع) یو جلد نشر کړاودی وائی چه دا کتابونه خلوینښت صندوقه او اکثر هم پښتو وه لو یه برخه ئې په (۱۸۵۷ ع)

(۱) تاریخ مرصع (۲) دپښتو ګرامر مقدمه (۳) دحیات حافظ رحمت خان په نامه یو مفصل کتاب سید الطاف علی بریلی لیکلی او په هند کښې په ۱۹۳۳ ع چاپ شوی دی دا کتاب ډېر مفصل او مستند دی دغه مطالب ځنی اقتباس شول .

دلیکهنو په‌فساد کښې برباد شوه (۱) حافظ رحمت خان دپښتو او پارسو دشعر دیوان هم درلود دارمستتر وایی چه‌ددغه دیوان وجود ماته دهند پښتنو په تینګه وو‌ایه او جان استریچی لیکی چه‌ماته له‌هند‌ه‌څخه‌نی پارسوغزلی راورسیدی چه‌هغه دحافظ رحمت خان‌وی ، علاوه‌پردغه دارمستتر وایی‌چه‌ماته‌په رامپور کښې یوه پښتانه دپښتو اشعارو یوه‌مجموعه‌را کړه چه‌دحافظ رحمت خان اونوروپښتنو سردارانو اشعار پکښې‌وه اودغه مجموعه اوس‌د برتش‌موزیم په‌شرقی آثارو کښې ساتای ده‌یودحافظ رحمت خان شعر په دغه مجموعه کښې‌دمنولو غندنه‌وه(۲) حافظ رحمت خان دپښتنو‌په تاریخ کښې‌دوه کتابونه کښلی‌دی :

(۱) تواریخ رحمت خانی : په‌دی کتاب کښې‌دپښتنو تاریخی احوال‌او دیوسفزو راتګ‌ئ‌له قندهاره کابل اوبیاپېښورته مفصلاً لیکلی شوی دی‌دا کتاب‌په( ۱۶۲۲ع = ۱۰۳۲ هـ ) کم مؤلف په‌پښتو کښلی‌و خوحافظ الملك په (۱۷۷۰ع = ۱۱۸٤هـ) په‌آسانه‌او روانه پارسی ترجمه کړ. ددې نسخه‌اوس‌هم‌دلندن داندیا آفس په کتب خانه کښې شته اوپه‌هند کښې هم‌د پټنی‌دخدا بخش‌په کتب‌خانه اودآ ګری دسیدعشرت علی‌څخه‌شته (۳)

(۲) دحافظ‌الملك بل‌تاریخی کتاب خلاصة الانساب دی‌چه‌د لندن‌په برتش موزیم‌اوپه هندکښې نسخی‌شته (٤) ددغه کتاب یوه نسخه په‌پښتو ژوانه کښې هم‌شته اوتر امبر (۱۲۳٤) لاندی خوندی ده .

مؤلف ددې کتاب په‌لیکنه داخونددرویزه تذکرة‌الابرار، اومخزن‌افغانی خانجهانی، اوتاریخ شیرشاهی اونورو کتابوته حواله‌کوی ، داعلیحضرت احمدشاه بابا دری سفره هندته یادوی ، اوپه‌ښه نامه‌ئې ستایی. کله‌کله دخوشحال‌خان په‌بیتوهم استناد کوی . کتاب له‌لمړی مخه تر (۷) حمدونعت‌دی، وروسته دخپل‌نیکه شیخ کوټا بابا تګ هندته‌بیانوی، اودسړبنو بر‌بڅوانساب ښئی، له(۳٤)مخه دوهم‌فصل اودبیټنی داولاد بیان شروع کېږی ، په(۳۶) مخ کښې دریم‌فصل اودغرغښت بیان‌دی‌نور کتاب تر(۵۶)مخه اخلاقی‌مضامین‌اودتسنن‌په‌ملتیا کښې‌خبری اتری‌دی.

دی‌وایی : چه‌دغه کتاب‌ما له دې‌جهته ولیکلی، چه دهند پښتانه خپل اصلیت هېر نکړی، اودخپلو اجدادو په‌حال خبروی (۵) د کتاب ژبه پارسو ده ، په‌عربی جملو اوخبرو هم ډېر مشحون دی .

راورتی مستشرق د پښتو ګرامر په‌مقدمه کښې دغه کتاب‌نواب الله‌یارخان‌ته منسوبوی، چه دحافظ الملك‌زوی دی، مګر داخبره ددې‌مستشرق غلطی‌ده، اونه‌ښایی‌چه‌مونږ په‌خطاووزو .

---

(۱)درو هیلوجنګ دجان‌استریچی (۲)دجان استریچی دروهیلو جنګ .

(۳)حیات‌حافظ رحمت‌خان ص۲۹۹ (٤)حیات حافظ ص۲۹۸

(۵) له قلمی خلاصة‌الانساب لنډونه

## (۲۷) نواب مستجاب خان بړیځ د «گلستان رحمت» لیکوال

دپښتنو بړیځو پاچهانو له علمی او نوموړی کورنی‌څخه ، دحافظ رحمت خان زوی دی ، چه دخپل پلار دشهادت پروخت د (۱۳) کالو و ، په‌دوشنبې (۲) دشوال (۱۲۴۸ه) په‌بریلی کښې وفات ، اوپه‌هغه باغ کښې ښخ‌دی ، چه دده په‌نامه یادېږی .

مستجاب‌خان دخپل پلار په‌دول ډېرعالم اومتقی مشرؤ ، په‌عربی ، پارسو ، پښتو کښې‌ماهر لیکوال اوهم دخپل‌عصر ښه‌مؤرخ‌دی . دده له‌تاریخی آثارو څخه «گلستان‌رحمت»دی، چه دخپل‌پلار دژوندانه احوال اودهند دپښتنو معاصر تاریخ‌دی. دا کتاب په‌پارسی ژبه په‌خورا صحت اوروانه‌ژبه اوښه‌انشاء کښل‌شوی، او مؤلف خپل‌مشاهدات اوډېرتاریخی وقایع په‌خورا دقت اوتحقیق پکښې لیکلی‌دی. اوقلمی نسخې‌ئې دهند په کتب‌خانو کښې شته .

مستجاب‌خان اوه زامن‌درلوده ، یولمسی ئې محمدعبدالرزاق خان هم‌دډېرو تالیفوخاوند دی، اودشعر دیوان هم لری (۱)

## (۲۸) سعادت‌یار خان بړیځ د «گل رحمت» لیکوال

دی‌دحافظ محمدیارخان زوی او دحافظ رحمت‌خان لمسی، اوله‌هغې علمی کورنی څخه پورون ستوری‌دی، چه د (۱۲۴۹ه) په‌حدودو کښې یوکتاب«گل‌رحمت» په‌پارسی و کښل دده شعری تخلص «صاحب» دی ، اوپخپل کتاب کښې دبړیځو دکورنی‌احوال اوهم‌هغه حوادث کښلی‌دی، چه‌دده په‌عصر کښې په‌هند کښې پښتنوته ورپېښ شول .

دی دخپل‌عمر په‌پای کښې دبیت الله دزیارت دپاره ولاړ، پرلاری دهند په‌بروده کښې رفات اوهم‌هورې ښخ‌شو ، ددې علمی اوادبی کورنی مشهور رکن‌دی (۲)

## (۲۹) نیازاحمدخان «هوش» دتاریخ «روهیل کهند» لیکوال

دنیازمحمد زوی اودحافظ یارمحمدخان لمسی اودحافظ رحمت‌خان کړوسی، اوله‌دغه‌علمی خاندانه څخه معروف مؤرخ او لیکوال دی ، چه «هوش» تخلص لری ، او دډېرومؤلفاتو خاوندډی مثلا کلیات هوش، ترانهٔ هوش حدیقهٔ نعت اونور . . . په‌اردوډېر اشعار لری اودروهیل کهنډ تاریخ ئی‌هم په اردو کښلی دی ، چه‌دغه کتاب هم دهند دپښتنوتاریخ گڼل کېږی ، د (۱۲۶۰ه) په حدودو کښې ژوندی و ، عمرئې په‌سیاحت تېراوه اودهند په‌علمی اوادبی جرگو کښې شریك و (۳)

---

(۱) حیات‌حافظ رحمت‌خان‌ص ۳۴۹ (۲) حیات حافظ ص ۳۲۱

(۳) حیات حافظ ص ۳۲۶

## (۳۰) محمد سلیمان خان «اسد» د «تاریخ افغانستان» لیکوال

محمد سلیمان خان بن محمد موسی خان بن نواب محبت خان بن حافظ رحمت خان متخلص په «اسد» هم دد غی علمی کورنی یو ستوری دی ، چه هم شاعر هم ادیب هم لیکوال و ، ده دپښتنو تاریخ په اردو کښلی دی ، چه مشهور دی په «نقش سلیمانی» یا «تاریخ افغانستان» (۱)

## (۳۱) نواب محبت خان د «ریاض المحبة» لیکوال

نواب محبت خان دحافظ رحمت خان زوی و چه دخپل پلار دشهادت پروخت (۲٤) کلن ، اوددې کورنی یو نوموړی پښتون سردار او امیر دی ، دی لکه خپل پلار دعلم خاوند او په عربی او پارسو اواردو او پښتو کښې شاعر او لیکوال و ، خومتأسفانه دده اشعار د (۱۸۵۷ م) په اړو دوړ کښې تلف شوه ، په سنسکریت کښې هم ډېر مهارت د رلود . دده ځنی اردو او پارسو او عربی اشعار تراوسه محفوظ دی دده یو پارسو مثنوی د «اسرار محبت» په نامه کښلې او یوه دپارسو ژبې قاعده اوصرف اونحو ئې لیکلې چه «آمدنامه» نومېږی ، محبت خان په ۱۳ دصفر (۱۲۲٤ ه) په لکهنو کښې وفات اودوزیر باغ سره کشور گنج ته نژدې ښخ سو ، دده له پارسو اشعار وخخه دغه دی چه استادی ئې ځنی ښکاری (۲)

| | |
|---|---|
| گر کشش من اثری داشتی | یار بسویم گذری داشتی |
| آنکه جهان را به نگه زنده کرد | کاش به ماهم نظری داشتی |
| زیستمی بی تو ، اگر مثل تو : | ما در گیتی پسری داشتی |
| دانهٔ مهر اربدلش سرزدی | نخل امیدم ثمری داشتی |
| گر رخت ازپرده برون آمدی | شام «محبت» سحری داشتی |

دابیت هم دده دی :

زسر گذشت «محبت» زهر که پرسیدم ‌‌‌‌‌‌ بعارض اشك بپایی چکیدو ، هیچ نگفت

محبت خان ډېر فنان او سلیم الطبع سړی و ، په موسیقی کښې هم ښه معلومات درلودل ، داسې ښکلی و ، چه خلق به ورته اریان وه ، غلام حسین مورخ چه د ده معاصر دی ، داسې لیکی چه «مابخپله دحافظ رحمت خان کورنی په لکهنو کښې ولیدله محبت خان په صورت او سیرت دسر داری وړ دی ، خو افسوس چه سفله پرور ی زمانې دوی اوس په بلا کښې ایستلې دی» (۳)

---

(۱) حیات حافظ ص ۳۱۹ ‌ (۲) حیات حافظ ص ۳۱۳

(۳) سیر المتأخرین

خلاصه : محبت خان ددې کورنۍ نوموړی سردار و ، چه د مغولي وروستني پاچاچېا ندار شاه له خوائې د «نواب مظفر الدوله شهباز جنګ» لقب دراود !

نواب محبت خان يو خورا مهم کتاب په پښتو کښلی دی، چه نوم ئې «ریاض المحبة» دی ، دا کتاب راورتی لیدلی او داسې ئې پېژنو ، چه «د سرجا رج بار او په خواهښت په (١٨٠٥-٦ع=١٢٢٠ هـ) ... لی شوی ، او (٧٠٠) پاڼې دی ، چه کوچنۍ صفحې لري، دپښتو مهم لغت دی، اود افغانو ګردا نونه لري ،(١) » دراورتي له د غه بیانه ښکاري ، چه رياض المحبت دپښتو يو لغوي اوګرا مري کتاب دی، مګر يو ځای پخپله را ورتي (٢) ځنې مهم تاريخي مطالب له دغه کتابه را نقل کوي ، اوداسې معلومېږي، چه په دغه کتاب کښې محبت خان دپښتنو تاريخ هم کښلی و ، ... برخه چه راورتي د دغه کتاب له پښتو مضمونه په انګرېزي ترجمه کړې ده ، دپښتنو احوال دی، د سلطان محمود اوغزنو يانو په دوره کښې، اوددې خبرې علل ئې بيان کړی دی، چه په هند کښې ولې پښتانه «روهيله» بولي ؟

دحيات حافظ رحمت خان ليکوال ، چه دې زماني يوه سړی دی، اوپخپل کتاب کښې ددغه خاندان ټول احوال مفصل کښلی دی ، فقط دونې وائي : چه محبت خان يو خورا مفصل قاموس هم کښلی و (٣) مګر نوم ئې نښايي چه نه و ورته معلوم (٤) .

## (٣٢) .... د تذکرة الملوك ليکوال

د تذکرة الملوك په خصوص کښې فقط مستر راورتي څه معلومات کښلي دي، چه بل ځای څه نشته، دا کتاب لکه چه فقط يوه منحصر بفرد نسخه وه، اوهغه د راورتي لاس ته ورغلې وه، دپښتو ګرامر په مقدمه کښې لاندېني معلومات ليکي : «تذکرة الملوك دسدوزو تاريخ دی، اته ټوکه او (٦٤٠) مخه لري، دا کتاب ډېر کمياب دی، اوزما په خيال به ئې په افغانستان کښې کمه بله نسخه هم نه وي، د کتاب دوه ثلثه ... وقايع دی ، چه داحمد شاه ابدالي تر مرګ وروسته واقع شوي دي، دا کتاب په پښتو کښل شوی دی، اوليکو نکی ئې وايي چه دا کتاب فقط زه دسدوزو په تاريخ کښې ليکم ، او له دغو کتابو مې استفاده کړې ده :

---

(١) دپښتو ګرامر مقدمه. (٢) دپښتو ګرامر مقد مه ص ١٨ - ١٩

(٣) حيات حافظ ص ٣١٣ (٤) له دې کورنۍ څخه يو بل نومو ړی دپښتو مؤلف نواب الله يارخان دحافظ رحمت خان زوی دی، چه دعمر پر ٨١ کال د ١٢٤٨ هـ دشعبان په ٩ ورځ وفات شوی، اويو دپښتو لغت ئې کښلی دی چه عجايب اللغات نومېږي، راورتي دا کتاب دراود، او وايي چه په (١٨٠٨ع=١٢٢٢ هـ) په ٧٤٠ مخه کښې کښل شوی اوهرمخ ئې ١٧ ليکې دی ، دا کتاب ماندي ليدلی چه تاريخي مباحث لري او که يوازې لغت دی ؟ نو ځکه مې الله يارخان د مؤرخينو په ټولي کښې نه وشمېره .

تاریخ سلاطین سوریه ـ طبقات اکبری ـ آئین اکبری ـ مرآة الافغانیه ـ دصفوی شاهانو تاریخ ـ شاهجهان نامه ـ تاریخ عالمگیری ـ تاریخ فرخ سیری ـ تاریخ محمد شاهی ـ نادر نامه تاریخ احمد شاهی ـ رسالهٔ اکبر خد که ـ

دا کتاب یوه مقدمه او دوه اصله او یوه خاتمه لری، او د مضامینو فهرست ئی دادی :

مقدمه : دسد وزو دپلرو او نیکو بیان ـ

لمړی اصل : دهغو قبیلو بیان چه په افغانستان کښې اوسی

دا اصل دوې فرعی لری: لمړی ، دهغو کورنیو بیان دی ، چه پر نوروئی حکومت کړی دی .

دوهمه فرعه: دهغو قبیلو بیان چه پخپلو مینو کښې پرتې دی .

دوهم اصل : دهغو سدوزو بیان چه خپله مینهٔ ئي پرېښې او په ملتان کښې میشته شوی دی

دا اصل هم پنځه فرعی لری :

لمړی فرعه : خان مودود خېل . دوهمه فرعه: دبهادر خېلو تاریخ . دریمه فرعه : د کامران خېلو احوال ، څلورمه فرعه : دزعفران خېلو احوال . پنځمه فرعه : دخواجه خضر خېلو بیان چه دوی سلطان خد که خېل بلل کېږی .

خاتمه : دخواجه خضر خېلو او داحمدشاه درانی احوال او دده فتوحات په هند او پنجاب کښې (۱) راوړی چه تذکرة الملوك لیدلی وه ، له هغه کتابه ئي دغه لوړ معلومات کښلی ، او هم ئی ددغه کتاب مقدمه په انگریزی ترجمه کړېده داسی معلومېږی چه ددې کتاب دمؤلف نوم پخپله راوړی ته هم نه ؤ معلوم ، ځکه چه دکتاب ذکر مفصل کوی ، امادمؤلف نوم کوږتې نه اخلی .

دتذکرة الملوك ماخذ چه مؤلف ذکر کړی دی ، او هم هغه انگریزی ترجمه چه د کمتاب له مقدمې څخه دراورتی په مشکوره سعی پاته ده ، مونږ ته دمؤلف په خصوص کښې داسی فکر راکوی :

دتذکرة الملوك مؤلف یوه ، اوعالم او مورخ اودپښتو ژبی یو ښه لیکوونکی ادیب ؤ ، ښه مؤرخ و ، ځکه چه دخپل کتاب ماخذئي ثقه منوولی دی ، اودمقدمې مطالب هم غوره او مستند ښکاری ( دهغه وخت له تاریخی معلوماتو سره سم ) دتذکرة الملوك دمؤلف د ژوندانه عصر هم دتیمورشاه زمانه یعنی د (۱۲۰۰ ه) تاکلای شو ، ځکه چه راورتی وایی ، چه د کتاب یوه برخه هغه وقایع دی ، چه داحمدشاه بابا ترمړینی وروسته پېښ شوی دی .

دکتاب مقدمه چه راورتی په انگریزی ترجمه کړې ده ، عمده مطالب ئي دغه دی :

دپښتنو داصلیت په باب کښې هغه قصې اوروایات چه کلاسیکی مؤرخینو ذکر کول (او اوس مدار داعتبار نه دی ) دپښتنو د نو مورو اومشاهیرو ذکر ، دغه بحثونه ئي تدقیقی رنگ لری

(۱) دپښتو گرامر مقدمه ص ۹ـ۱۰ـ۱۱ وغیره

اوداستفادې ورډي، دپښتنواحوال دکسې په غره کښې بيانوي، اوبيا دملك ابدال احوال ليکي ،
خو دملك سدو عصرته رارسيږي، دلته دسدوزو په خصوص کښې خورا ښه اوغنيمت مواد ليکي
ددې کورنۍ اقتدار اوروابط دهند له لوديانو اوسوريانوسره بيانوي، چه دغه تاريخي ځېرنې ئې
ډېرې ښې اوداستفادې وړدي .

خلاصه : دتذکرة الملوك دمؤلف نوم متأسفانه ندی رامعلوم ، اونه ئې او س کتاب ميندل
کېږي، هغه نسخه چه دراورتي څخه وه ، ندهراښکاره ، چه څه شوه ؟ خوتذکرة الملوك په پښتو ژبه
دپښتنو دتاريخ يومهم اوګرانبها کتاب و .

سلطان محمد قندهاري هم ليکي، چه ده په قندهار کښې دسردار محمدعلم خان بن سر دار
رحمدلخان څخه يوکتاب وموند، چه دسدوزو په باچهي کښې کښل شوی او ددغه عصرحوادث
مفصل پکښې راغلي دي (۱) ددې کتاب نوم سلطان محمد نه ليکی، خودخپل کتاب په مقدمه کښې
(مجموعهٔ ابدالی) بولی ځکه چه له دغه کتابه د سلطان محمد اقتباس د راورتي له ترجمې سره
نژد ې والی لري، نوويلای شوچه دغه کتاب به هم هغه تذکرة الملوك و .

## (۳۳) خان جهان خان لودي د « مرآة الا فاغنه » ليکوال

راورتي دا کتاب دمرآة الا فغانيه په نامه دتذکرة الملو ك په ما خذو کښې ذکر کوی ،
اودمؤلف نوم ئې نه ښيي (۲) له نور وکتا بو څخه معلو مېږي ، چه د کتا ب صحيح نوم
مرآة الا فاغنه دی ، اومؤلف ئې خان جهان خان لودی وو ، (۳) دهند له مشهو رو پښتنو
څخه مونږ دوه تنه په دې نامه پېژنو : لمړی خو هغه خان جهان خا ن لودی دی، چه ذکر ئې
دمخزن افغاني په تفصيل کښې وشو، بل خان جها نخان هم دسلطان سکندر لودی (۸۹٤-۹۲۳ه)
له مشهورو امرا ووڅخه دی ، چه په دغه وخت کښې دلوی وزير حيثيت لري ، اود را پړ ی
جا ګير داردی (٤) دنعمت الله په قول خان جهان خان په (۹۰۱ه) وفات شوی ، او تر ده
وروسته ئې زوی احمدخان د« اعظم همايون » په خطاب سرلوړی شوی وو. (۵)

دا پښتون سردار لکه چه عالم او ليکوال اومورخ تېر شوی دی ، چه مرآة الافا غنه
دده تاريخي اثردی ، اوداسې ښکاري چه دپښتنو دباچهانو چه په هند کښې تېر شو ی دی ،
او مخصوصاً دسلطان سکندر لودی احوال ئې مفصل کښلي وو ځکه چه د کتا ب نسخه نده
ليدلې شوې ، اولوړرو ايات هم پوره کفايت نه کوی ، نو دمرآة الا فاغنه انتسا ب
هم دغه خان جهان خان ته زما په عقيده سل په سل کښې مثبت ندی .

(۱) تاريخ سلطاني ص ۵۲ (۲) دپښتوګرامرمقدمه ص ۸ (۳) تاريخ سلطا نی ص ۵۲-۵۷-
خورشيدجهان ص ۸۷-۸۹- (٤) خور شيد ص ۸۹ (۵) مخزن افغانی ص ۷٦

## (۳٤) منشي عبدالکریم د «تاریخ احمد» لیکوال

ددې کتاب نسخه له قاري عبدالله خان څخه وه ، نه پوهېږم چه څه شوه ؟ دا کتاب د پښتنو دسلطنت مفصل تاریخ دی ، چه منشي عبدالکریم دشجاع الملك سدوزي په وخت کښې کښلی دی ژبه ئې پارسو ده .

منشي عبدالکریم مدقق او پوه مؤرخ دی ، دنادر افشار احوال او د اعلیحضرت احمد شاه بابا دسلطنت وقایع ئې خورا مفصل کښلي دي ، او داسې ښکاري چه ددې تاریخ په لیکنه کښې هم متصد د دغه عصر حوادث وه ، او د احمد شاه بابا په نامه ئې بللی دی . دا کتاب په اردو هم ترجمه شوی او د «واقعات درانی» په نامه نشر شوی دی ، فیض محمد ئې هم په خپلو ماخذو کښې ذکر کوی . د افغانستان په تاریخ کښې ډېر قیمتی معلومات لري اوله مهمو مراجعو څخه گڼل کېږي .

## (۳۵) اکبر دیوي تاریخي رسالې لیکوال

دا رساله راورتي د تذکرة الملوك په ماخذو کښې راوړی ، او وایي چه د تذکرې خاوند له رسالهٔ اکبر خدکه څخه استفاده کړې ده ، داسې معلومېږي چه اکبر نومې پښتون یوه تاریخي رساله در لوده ، چه د تذکرة الملوك دښتن په لاس کښې وه (۱) خدکه راورتي په لاتیني حروفو داسې ضبطوي Khadkah او لکه چه دمخه د تذکرة الملوك په بیان کښې وویل شوه ، دسدو یوزوی خواجه خضر چه احمدشاه بابا هم دده له نسله دی اولادئې په «سلطان خدکه» مشهور دی ، ددې تسمیې وجه حیات خان او سلطان محمد او نور مؤرخین هسې کاږي ، چه دخضر خان زوی ، سلطان خداداد نومېدی او دغه سړی پخپل عصر کښې ډېر مقتدر مشرو ، پښتانه لکه چه هر نوم داعزاز دپاره تصغیر کوي ، دئې «سلطان خودکی یا خدکه» باله ، نو په سدوزو کښې هم دخواجه خضر اولاد چه سلطان خودکي ته منسوب دي ټوله خودکي بولي (۲)

په هر صورت اکبر ددغې طایفې څخه یو مورخ دی ، چه رساله ئې د تذکرة الملوك دخاوند په لاس کښې وه .

## (۳٦) ..... د «نادرنامې» ناظم

ددې مورخ نوم ندی را ته معلوم ، خو دونې ویلای شم ، چه دی اصلاً دخراسان و ، او دده نیکه قاسمي شاعر دی ، چه دمشهور مستشرق پروفیسور براون انگلیس په قول ئې دفردوسي دشهنامې په دول اشعار ویلي ، اوقلمی نسخه ئې دانگلستان دکیمبرج په دارالفنون کښې شته (۳)

(۱) دپښتو گرامر مقدمه (۲) حیات او سلطاني (۳) دبراون د پارسو ادب تاریخ



جنرال پاټ ترهرلي دامريکې د متحده ممالکو
درئيس جمهور خصوصي نماينده په شرق وسطی
کښي چه په ۱۳۲۲ کال کابل ته راغلیو
او وروسته د همايوني اعليحضرت د حضور
دشرفيابۍ اوځو ورځي استوګنې څخه ئې بېر ته
مراجعت وکړ .



ښاغلی سراج الدينخان « سعيد »
دشخصيت د مقالي ليکونکی



ع ، رشيد خان « لطيفي » د پوهني
ننداري عمومي مدير چه سږ کال ئې په
کار پیل کړی دی



بناغلی فضل حق خان دقوای مرکز خیاط چه عمر ئی له پنځو سو کالو تیر دی او د سواد خوانی په کورس کښې ئې شهادتنامه اخستی ده

خدای پاک را شکر گذارم که مرا بعد از سن پنجاه

بنعمت بینائی دل که خواننده گی و نویسنده گی باشد

نوازش فرمود که امروز میتوانم کلام پاک ادرا[illegible]

خوانم و خیر و شر خود را بدانم و تا جائیکه از زحمت

[illegible] معاصر پوره باشد برای وطن خود هم خدمت نمایم

شکر الله که معلم ادارهٔ کاملی هر دم از فیض او حاصلی دارم

فضل حق خیاط ملازم فرقه اول قوای مرکز [illegible]



بناغلی احمد جان خان دحقوقو دفا کولتی خانه سامانچه له پنځوسو کالو اووښتی او د سواد خوانی په کورس کښې په اعلی درجه فارغ التحصیل شویدی

دبناغلی فضل حق خان خیاط دلیک نمونه

د نادر نامې ناظم دقاسمي شاعرلمسی او د احمدشاه بابا معاصر دی ، چه یو کتاب ئې د نادرنامې په نامه دخراساني نادرافشار پهشرح حال کښې په (۱۷) زره بیته د حسین خان فراهي په امر منظوم کړی دی، چهدغه حسین خان داحمدشاه بابا لهخوا د خراسان حاکم و ، دا کتاب داعلیحضرت احمدشاه بابا په نامه د (۱۱۷۲ هـ) دلمړی خور پهمیاشت پای ته رسیدلی دی . (۱)

د نادرنامې ناظم دهوتکو دسلطنت اوداحمدشاه بابا دنیکونو احوال مفصل لیکلی، اوبیا داحمدشاه بابا دحیات ډیروقایع ذکر کوی . ددې کتاب یود قلمی نسخه زماشخه شته، دبلې نسخې درک نلرم. پارسو شعرئې خوږ اوډفدر وړدی .

## (۳۷) ..... د « سلطان اویس » د تاریخ لیکوال

ددغه کتاب وجود لهبله خایهڅرا نه معلوم دی ، اونه ئې مؤلف پیژنم ، خود ویرانه ښکاره ده ،چهد مرحوم حاجی میرویس خان هوتك په احوال کښې په اویرنامه یو کتاب په عربي ژبه لیکلی دی شیر محمدمؤرخ تصریح کوی، چهدغه کتاب کښې دحاجي میرویس خان اودده دوروروعبدالعزیز دعهدوقایع مفصلا راغلی دی(۲) او افسوس نهدی ددغه کتاب شرح لیکی ، اونه له بل خاخه ماددغه کتاب په باب کښې څه ارو یدلی اولیدلی دی ، نو پخپله د کتاب وجود هم محل دتامل دی ، ځکه چهپه دغه عصر کښې عربي کتاب لیکل بالکل له روا جه لو یدلی وه ، اوهم معاصر یئو لیکه محمد هوتك ددغه تاریخ ذکر نه دی کړی ځکه چه د شیر محمد قول خبر واحد دی ، نوپه سل کښې سل دویساوړ نهښکاری:

## (۳۸) میا عمرچمکنی د پښتنو د « نسب نامې » ناظم

دا سړی په پښتو کښې ډیرمشهور اوپه روحانیت او علم وتلی دی ، د پېښور پهچمکنو کښې او سید ی ، او د احمد شاه بابا معاصر دی . اعلیحضرت احمد شاه بابا دده سره علمی اوروحاني روابط دراودل ، اوهر په پلاجهبه هندته تی ، دده سره بهئې ملاقاتونه کول او فیوض بهئې ځنی اخستل .

میا عمر ډیر تصانیف لری ، عالم او ادیب سړی دی ،دپښتنو اقوامو نسب نامه ئې په پښتو شعر منظومه کړیده(۳) ددې کتاب نسخهما تهنده معلومه چهشته که یه؟ خومحمد حیات خان دخپل تاریخ پهما خذو کښې پښتو نسب نامههم راوړی ، ښائی چهدغه کتاب وی.

میا عمردخپل عصر معروف عالم اوهم دیوه ادبی حرکت مؤیداو حامی دی ، پخپله هم دپښتو ادیب اودده مریدان همپښتانه شعرادی ، چهلهدغو څخه یو مسعودگل یاسینی دی چه دخپل مرشد

(۱) قلمی نادرنامه. (۲) خورشیدص ۱۳۲ (۳) صولت افغانی،

مناقب ئې په پښتو مثنوی کښې په خو راسلاست نظم کړی دی ، او یو نسخه ئې دبرطانیا په موزیم کښې شته (۱)

## (۳۹) محمد د «پټې خزانې» لیکوال

ا لکه چه دهغه نامې واوستل ، پټه خزانه دپښتنو دادب او رجالو او هم دشاعرو یو مهم تاریخ دی ، چه داعلیحضرت شاه حسین هوتك په عصر کښې دشوال په (۲٤) هجری کال (۱۱٤۲ ه) ئې لیکل پای ته رسولی دی ، محمد هوتك دپښتنو مدقق مورخ اود پښتو ژبې نو موړی لیکوال اوشاعر دی ، چه نورل کتاب ئې دهغه معارف پالونکی پاچا په نامه کښلی دی .

خوشبختانه محمدهوتك د کتاب په پای کښې دخپلې کورنۍ احوال هم لیکی ، چه په دی ځای کښې زما دپاره دیر غنیمت دی ، او لنډه وم ئې :

محمد د داؤدخان زوی دقادرخان لمسی په قوم هوتك ، چه اصلاً په مرغه کښې اوسېدل ، اوقادرخان په هغه ځایه سوری ته راغلی ؤ ، له دغه ځایه ئې یون وکړ ، اودقندهار کوکران ته راغی ، په سن د (۷٦) کالو په (۱۰۵۸ ه) وفات او هلته ښخ شو ، امادداؤدخان دمؤلف پلار په (۱۰۲۹ ه) کال په کوکران کښې وزیږېدی ، اوپه صباوت کښې علوم ولوستل ، شاعراوعالم سړی شو . داؤد خان پزرب اود کسې په غره ، اوپیښور کښې سیاحتونه وکړل ، اودحاجی میرویس خان مرحوم سره دآزادی غوښتلو په جګړو کښې ملګری و ، په (۱۱۲٦ ه) داؤدخان دحاجی میرویس خان له خوا په فراه اوسیستان اوګلستان کښې دپښتنو دسپه سالار په ډول مقرر ؤ ، اوهلته ئې دمتجا وزو پردوو لیکرو سره جګړې کولې ! داؤدخان په (۱۱۳٦ ه) وفات او په کوکران کښې ښخ شو ، دده دادب اوعلم دنمونې په ډول دغه دوې رباعی وکوری ، چه دتجنیس په صنعت کښې ځوږنی قیمت لری :

| | |
|---|---|
| په اوربل ئې لمبې ګډې حال ئې بل سی | چه دجا په زړه کښې اور دمینې بل سی |
| د اوربل مینه که تل د زړه په تل سی | اور دمینې کله مری د زړه له مېنې |

---

| | |
|---|---|
| څوك چه وینی ناله ځوانو یازړو ښخه | که ئې وینې وینی تل ځاځی له زړو ښخه |
| په کړو دغم لوېدلی ستا له کړو ښخه | د زړو له زړه که وینې و ینی ځاځی |

امابیله محمد دپټې خزانې لیکوال : په (۱۳) درجب (۱۰۸٤ ه) په کوکران کښې وزیږېدی او تر اتلسم کاله ئې مروجه علوم لکه : فقه ، تفسیر ، اصول اودفصاحت علوم لکه قافیه ، عروض بیان ، معانی اونور ولوستل ، ځکه چه دپلار ئې که په مناسبات ئې دهوتکو دشاهی کورنۍ سره وه نو داعلیحضرت شاه حسین په امر قندهار ته راغی ، اوهر کله به ددغه زلمی پاچا په دربار کښې و ، اودحضور ادبی لیکوال و ، هغه ادبی اوعلمی مجلسو نه چه ددغه پوهنوال پاچا په دربار کښې به

---

(۱) اوی احمدشاه بابا ص ۱۵۳

هر کله کېده، یو رکن ئې محمد ؤ، دی په پټه خزانه کښې د دغو ادبی مجلسو او تو لنو حال به لیکی .

محمد بیله پتی خزانې یو بل کتاب «خلاصة الفصاحة» هم په پښتو کښلی چه د فصاحت علوم ئې پکښې راوړی دی، بل علمی پښه راثر ئې «خلاصة الطب» دی، چه په ۱۱۳۹ ه کال ئې دهغه زامن اعلیحضرت حضورته وړاندی کړ، او سل طلاوی ئې جایزه وموندله.

محمد د شعر دیوان هم لری، دغه شوبیتونه دده دی :

| | |
|---|---|
| ساقی پاخه دسرو ملو ډك یو جام را | ستا لغمه نا آرامه یم آرام را |
| نه نشاط سته نه مستی سته نه رندی سته | چه سم رند هغه او به علی الدوام را |
| په او بو می سوه زندگی لنز خه راتود کړه (۱) | محمد ته داور ډك یو هسی جام را |

# (٤٠) ریدی خان مهمند د «محمود نامې» ناظم

ریدی خان د غیاث خان زوی او د مسعود خان لمسی دی، چه پلرونه ئې د قندهار د شرقی خوا د مهمندو په کلی کښې او سیدل، غیاث خان د مرحوم حاجی میر ویس خان ملګری وو، او بیا به ریدی خان د محمد هوتك معاصر دی، په (۱۱۳٦ ه) اصفهان ته ولاړ، او هلته د اعلیحضرت شاه محمود بریالی سره وو، له هغه ځایه چه را غی، دهغه اعلیحضرت د فتوحا تو په احوال کښې محمود نامه نظم کړه چه شاور زره بیته وه (۲)

داسی ښکاری، چه ریدی خان په دغه خپل کتاب کښې د مرحوم حاجی میرویس خان د ملی نهضته راونیولی، بیا د اصفهان ترفتح پوری، ټول وقایع په پښتو خوازه مثنوی نظم کړی دی. محمد هوتك په پټه خزانه کښې له دغه کتا به یو با برا نقل کوی، چه د حاجی میرویس خان د ملی مجاهدت اودګرګین دوژلو قصې ...

# (٤١) زرداد خان د «صولت افغانی» لیکوال

دا کتاب ماند ې لیدلی، اونه ئې نسخه راته معلو مه ده، موج حسین خان مهمند هغې لیکی، چه په (۱۱۸۷ ه) زردادخان «صولت افغانی» و کیښ، او د پښتنو تاریخی احوال ئې پکښې شرکند کړ دی ددی مؤ لف ما خذ هم مخزن افغانی او تاریخ رحمت خانی او اخونددرویزه او نور دی (۳)

داسی معلو میږی، چه په صولت افغانی کښې تر اعلیحضرت احمد شاه بابا د مخه او دده د سلطنت احوال لیکل شوی وو، ځکه چه ماله دغه کتابه د میا عمر شوکښې د شرح حال حواله لیدلی ده، او میا عمر د دغه عصر له رو حانی مشاهیرو څخه وو.

(۱) پټه خزانه ص ۱۰۷-۱۰۸-۱۰۹-۱۱۰-۱۱۱ د قلمی نسخې.

(۲) پټه خزانه قلمی ص ۷۱ (۳) تحفة الپښتون -قلمی ص ٥

## (٤٢) افضل خان خټک د «تاریخ مرصع» لیکوال

داموْرخ د خوشحال خان له مشهورو لمسیانو څخه دی، څکه چه ماتی په پښتانه شعراء لمړی جلد (ص ۲۲۸) کښی مفصل حال لیکلی دی، نو دلته ئی تکرار ضرورت نلري، افضل خان داعثم کوفی تاریخ، او کلیله او دمنه هم په پښتو ترجمه کړی دی.

تاریخ مرصع هم ده په پښتو لیکلی دی، چه متاسفانه اوس ئی نسخه، نسته خو هیوز انګلیس لیکی چه دغه یو عمومی تاریخ دی، دپښتنو او مخصوصاً د خټکو احوال هم پکښی ذکر کیږی، او اکثر مطالب ئی له مخزن افغانی او درویزه څخه اقتباس شوی دی، هیوز دا هم وائی، چه د تاریخ مرصع اصلی نسخه د افضل خان په لاس کښی ده، چه په جمال کړ کښی اوسی، دوی نوری نسخی ئی هم سته، چه یوه په ما انده لری (۱)

راورتی په ګلشن روه او هیوز په کلید افغانی کښی له تاریخ مرصع څخه یو یو باب چاپ کړی دی.

## (٤٣) د سدوزو او محمدزو د عصر ګمنام مورخ

دپښتو ټولنی په کتب خانه کښی په لمبر (٦٤٤) یو کتاب سته، چه دا کتاب پر شنه پښتوانی کاغذ لیکل شوی، او تقطیع ئی (۱۱ $\frac{1}{2}$ × ٦) انچ دی، په هر مخ کښی (۱٤) لیکی او ټوله (٤٦٠) مخه دی، خط ئی دشکست او نستعلیق ترمنځ او بنه ندی، د موْلف او کتاب نوم ښکاره نه معلو میږی، پارسی انشا ئی هم تکلف ته مایله ده.

کتاب په حمد او نعت شروع کوی، وروسته وایی زه په زلمی توب په ښکار پور کښیوم، او بیامی دخراسان، هرات، قندهار، کابل، پېښور سفر وکړ، او دشاه شجاع د جګړو وقایع می په ستر ګو ولیدل، نو وروسته می داسی یو انګلیس په خوا هښت دا کتاب وکیښ (۲)

موْلف خپل تاریخ د نادر افشار له مرګه شروع کوی، بیا د احمدشاه بابا او تیمور شاه او شاه زمان او شاه محمود ذکر مختصر کړی، وروسته د شاه شجاع او د محمد زو د سلطنت ابتدائی وقایع مفصل شروع کوی، دوزیر فتح خان او دده دورونو نهضت بیا نوی، د کابل قندهار، پېښور او ټوله افغانستان دد غه عصر وقایع مفصل راوړی، دا نګلیسانو دلمړی وار راتګ ذکر هم څورا مفصل کوی.

داسی ښکاری چه موْلف خپله نسخه په (۲۰) دجمادی الثانی (۱۲۷۱ ه) تمامه کړی ده،

---

(۱) دهیوز د کلید افغانی مقدمه (۲) له قلمی نسخی څخه ص ۱ تر ۱۱

اودغه موجوده نسخه هم په (٦) دروژې (١٢٧١ هـ) ليکلې شوې ده . د کتاب دپای ليک داسې دی ، «بقلم حقير پر تقصير ميرزا محمد حسن خلف مولانا ميرزا عطا محمد »

له دې ليکه مونږ دمؤلف دنامه په خصوص کښې يو استنباط کولای شو ، چه دمؤلف نوم ميرزا عطا محمد وو ځکه چه د کتاب په پای کښې څو ځايه د «عطا» په نامه تلميح کوی ، مثلاً : « باتمام اين نسخهٔ موسومه تازه نوائی معارك پرداخته شد . . . اميد از آهنگ نوازان ساز ... اگر فقط به نقد تحسين و آفرين متاع هنرم را بخرند عين عطائی بر عطاست والا بزبان عيب جوئی ونخوت نام عطا بخطا نبرده معاف دارند .... هرگاه از راه لطف وعطائی بمطالعهٔ اين نسخه پردازند . . . . »

له دغه بيانه سړی داسې تخمين کولای شي چه ميرزا محمد حسن ددغې نسخې ليکونکی دمؤلف ميرزا عطا محمد زوی وو ، ځکه چه دتاليف د ختم او ددغې نسخې د ليکلو تر منځ فقط دوې مياشتې فاصله ده . متأسفانه ددغې نسخې يو څو پاڼې پرې شوې اوناقصې دی ، چه له دغو څخه يو څو پاڼې په بل خط بيا تکميل شوی دی ، او داسې ښکاری ، چه د کتاب بله نسخه هم موجوده وه .

## (٤٤) حاجی محمد عارف قندهاری د « مطلع او مقطع » ليکوال

حاجی محمد عارف دقندهار دی ، اودیوه خورا مفصل تاريخ ليکونکی دی ، چه لمړی ټوك ئې « مطلع » نومېږی ، اوبل ئې « مقطع » محمد عارف په قندهار کښې دبيرم خان مير سامان و (١) اودغه سړی سره ئې ترمرګه ملګری دراوده ، هندته ورسره ولاړ ، چه بيرم خان ووژل شو ، نو عارف له ګجراته حجازته ولاړ ، له حج وروسته تر (٩٨٥ هـ) دمظفر خان سره و ، په (٩٨٦ هـ) دا کبرپاچا دربارته ولاړ ، او دپنجاب په ديوانی مقرر شو . مګر ژر ئې استعفا وکړه ، او د مظفر خان سره په ټانده کښې اوسېدۀ ، په (٩٨٨ هـ) په دغه ځای کښې دمظفر خان سره يو ځای ووژل شو .

محمد قاسم فرشته دده له کتابه ډېر مطالب رانقل کوی (٢) او داسې ښکاری چه نسخه ئې له ده څخه وه اما اوس دعارف قندهاری له دغه تاريخه فقط يوه نسخه شته ، چه دهند درامپور په کتب خانه کښې ده ، ددې نسخې لمړی او وروستنۍ پاڼې نشته ، خوخوشبختانه دغه ناقص پاڼې دانګلستان دکيمبرج په کتب خانه کښې خوندی دی .

په « مطلع » کښې دهمايون دعصر حوادث ضبط وه ، اما په مقطع کښې دسلطان محمود له عصره بيا تر (٩٨٦ هـ) پورې دهند دټولو پاچهانو اودپښتنو دسلطنت احوال کښلی دی .

(١) ماثر رحيمی ج ٢ ص ١-٨ (٢) فرشته مقالهٔ ٤-٧-٩

نوحاجی عارف قندهاری یو پښتون مورخ دی، چه په هند کښې خپل کتب لیکلی دی ، دی شاعر هم ؤ ، امین زاری ئې دغه دوه بیتونه ضبط کړی دی :

صد آرزو است در دل تنگم گره ز دوست دل نیست در برم گره آرزوی اوست

ای بسا توبه که چون توبهٔ دیرینهٔ من (۱) خوبرویا ن بشکستند بیك چشم ز د ن

دحاجی عارف د «مطلع» درك او سنشته ، او دغه کتاب ورك شکاری .

## (٤٥) سلطان محمد «خالص» د «تاریخ سلطانی» لیکوال

سلطان محمد په نومور کو تاریخ لیکونکو کښې نه راځي، ځکه چه د ده کتاب چاپ شوی اومشهور دی ، مگر له دې جهته چه خوك دده په احوال ندی خبر ، نو ئې شهرت هم کم دی ، زه لاندینی معلومات ددې مؤرخ په خصوص کښې لرم :

«سلطان محمد خان دموسی خان زوی په قوم نصرت زی بارکزی دقندهار له پوهانو څخه ؤ چه په شعر کښې «خالص» تخلص کاوه ، ده خپل تحصیلات په قندهار کښې و کړل ، او په پارسو کښې ښه لیکوال اومنشی شو ، دامیر شیرعلیخان مرحوم په دوره کښې دقندهار له مشهورو خوانینو څخه و ، او ډیر عمر ئې په کلات کښې حکمرانی کړله ، هغه وخت چه غازی محمد ایوب خان په قندهار کښې پاچاشو ، دی ئې ملگری و ، اودمیوند په جهاد کښې هم برخه درلوده . د (۱۲۹۷ هـ) دروژی ترمیاشتی وروسته چه غازی مرحوم محمد ایوب خان له قندهاره ایران ته ولاړ ، نودده ملگری هم سره بیل شول ، او سلطان محمد خان مر حوم کراچی ته ولاړ ، او هورې اوسېد ده په قندهار کښې لا یو مفصل تاریخ کښلی و ، چه تاریخ سلطانی نومېد ، لمړی جلد ئې په (۱۲۹۸ هـ) په بمبئی کښې ښخیله طبع کړ ، داجلد تر (۱۲۷۹ هـ) پوری له ابتداء څخه د پښتنو احوال لری اوهم وقایع په خورا ښه صورت لیکی ، دسلطان محمد دتاریخ دوهم ټوك چه دده دعصر وقایع اوهم مشاهدات وه ده لیکلی اوهم چاپ شوی دی ، چه دهغه نسخې متأسفانه دامیر عبدالرحمن خان په وخت کښې ضایع کړل شوې، او اوس نه میندلی کېږی، مگر له پخوا خلقو څخه روایت دی، چه له هغه کتابه یو څو نسخې پاته شوې او ضایع شوی نه دی ، که دتاریخ سلطانی ددوهم جلد کمه نسخه اوس ومیندله شي، دوطن دتاریخ دپاره به ډیره غنیمت وی .

سلطان محمد په زیارت دبیت الله شریف هم مشرف شوی و ، او پسله (۱۳۰۰ هـ ق) غالباً له کراچی څخه تللی او دهغه عصر دتور کیی په عربی مملکتو لکه شام ، عراق اونور . . . گرز ېدلی اوهم هورې وفات شوی دی . خا لص یو دپارسو شعر دیو ان هم درلود، چه دده تر مرګ وروسته محمد ابراهیم دده زوی هغه اشعار سره ټول کړی وه ، له دغه کتابه فقط لمړنی درې پانې زما څخه شته ، ابراهیم لیکی: زما پلار چه بیت الله ته ولاړ بیائی احوال معلوم نشو، خو کاله وروسته

(۱) هفت اقلیم.

دسلطان‌محمدخان ورور حاجي‌جان‌محمد مرحوم قندهارته را غی ، اووي‌ويل ، چه‌سلطان‌محمد په‌تورکو کښې وفات‌شو ، ابراهيم وايي : چه‌ديلار ډېر اشعار اومنثور ليکونه زماڅخه وه ، هغه‌مي سره ټول کړل او د «ديوان‌خالص» په‌نامه مي‌وبلل (۱)

ما (حبيبي) دخپلې کورنۍ له لويانوڅخه (خدای‌دې‌وبخښي) اروېدلي‌وه ، چه‌سلطان محمد خان عالم اوخورا پوه‌ليکوال‌و ، په‌قندهار کښې بهر کله له‌پوهانو اوعلما ؤسره محشور و ، اودمشهور حبوا خندزاده له‌زوي‌مولوي عبدالرحيم اخندزاده‌څخه‌ئې استفاده اولوست کړی‌و اودهغه ملګری هم‌و ، چه له‌قندهاره فرارسو ، نوهم دمولوي عبدالرحيم اخندزاده دزوی مرحوم مولوي عبدالرؤف‌خان سره يوځای کاکرستان‌ته ولاړ .

دا دوه‌بيته دده له‌يوه مناجاته را اخيستل کېږي (۲)

| | |
|---|---|
| اگر فضلت نگردد دستگير م | زشر نفس‌خود ، دردم بمير م |
| ز شر نفس و شيطان ده امانم | مگردان جز بذکر خود زبانم |

## (٤٦) قاسم‌علي‌خان د «محاربهٔ کابل» ناظم

داسړی دهند دی ، په (۱۲٦۰ ه) ئې د «محاربهٔ کابل» په نامه دفر دوسي دشهنامې په‌وزن يو کتاب تخميناً په‌نه‌زره‌بيته کښې نظم کړی‌دی ، دا کتاب دفيض‌محمد له ماخذ و څخه هم‌دی ، چه‌دسراج‌التواريخ په کښلو کښې استفاده ځنی کړېده ، قاسم‌علي د شه‌شجاع له عصره خپل‌تاريخ شروع کوي ، د افغانستان داړو دوړ او انقلاب حوادث او دېردو دحملو او جګړو وقايع په‌قندهار او کابل کښې څرګندوي . که‌څه‌هم دا کتاب دمتجاوزينو په طرفداری کښل شوی‌دی ، خوبياهم دوطن دتاريخ ددغې‌دورې دپاره بدندی اواستفاده ځنې کېدای شي . دکتاب‌ادبي‌جنبه اوشعرخوږ اوروان‌دی ، په (۱۲۷۲ه) دآګرې په‌سليماني مطبعه کښې چاپ شوی دی . مګر نسخې ئې اوس لکه قلمي کتابونه ډېرې نه ميندلې کېږي ، اودغه کتاب هم لږخلق پېژني . مؤلف دکتاب‌په‌سر کښې ليکي : چه زه دسند په‌سفر ولاړم ، چه را غلم خلقو دسفر معلومات‌راڅخه وغوښتل ، ماهم‌نظم کړل ، دنمونې په‌ډول‌دکتاب دپای څوبيتونه‌و لولی :

| | |
|---|---|
| ستايش به‌يزدان که اين نامه‌ام | سرا پا برآراست از خامه ام |
| مگر جان فردوسی پاك زاد | ز فردوس در قالبم رو نهاد |
| که‌زان‌همت اين نامه‌را گفته‌ام | سخن همچو سلك گهر سفته ام |
| بدريای معنی شدم غوطه‌خور (۳) | بسه سال اندوختم اين گهر |

(۱) دتاريخ سلطاني مقدمه اودديوان خالص لمړنی قلمي پاڼی . (۲) دديوان خالص قلمي پاڼي .

(۳) له‌محاربهٔ کابل‌څخه .

خرگندونه :

تردې ځایه ما دپښتنو دځینو نومورکو تاریخلیکونکو احوال اوددوی د کتابو په خصوص کښې ئې له لنډ معلومات سره راغونډ کړل ، دلته ما هغه کتب اومورخین ښودولي دي ، چه ددوی نومونه او کتب ورک او نایاب دي ، یائې خلق لږ پیژنی ، اوډېر معروف نه دی ، که نه وی دپښتنو او افغانستان تاریخونه او احوال نورو مؤلفینو هم کښلي دی ، خود هغو کتب چاپ شوی یا ډېر معروف دی .

لکه دا کتب : د احمدیادګار تاریخ سلاطین افغان ، دحیات خان حیات افغانی ، دشیر محمد ګنداپور خورشید جهان ، دفیض محمد سراج التواریخ ، دسیدجمال الدین افغان تتمة البیان فی التاریخ الافغان ، نسب افاغنه دمحمدعبدالسلام خان عمرخېل د ۱۹۱۴ع طبع ، تاریخ فرشته تاریخ فیروزشاهی ، تاریخ بیهقی ، اخبار الصنادید دنجم الغنی خان ، ارمغان اسرائیل دمنظور الدین اکبرنامه ، طبقات ناصری ، تاریخ ګزیده ، نیرنګ افاغنه ، تاریخ سرجان ملکم ، مرآة العالم طرزمعاشرت افاغنه ، ابن بطوطه ، تزک افغانی دمحمدعباس رفعت د۱۲۹۹ق لیك ، تحفة الپښتون د موج حسین خان مهمند ۱۳۱۷ق ، تاج التواریخ د امیرعبدالرحمن خان ، خصایل السعادت دسعادتخان ترین ، جهانکشای نادری ، روز نامچه د شه شجاع سدوزی ، تاریخ افغانستان دعلی قلی میرزا ، جام جم دفرهاد میرزا ، تاریخ مظفری د محمدعلی انصاری په ۱۲۰۲ق او نور . . . او نور . . .

# شخصیت

روزنه او پالنه :

ښاغلی سراج الدینخان «سعید»

## د شخصیت پېژندنه ـ د شخصیت ناروغی ـ د ناروغه شخصیت علاج

دشخصیت په باره کښې زمونږ لیکوالو لنډ او ډېر څه لیکلی دی ـ هر کله چه دوو ډکو دروز نې نه په هغو کښې یو صحیح شخصیت پیدا کول مقصد وی زما په خیال دا موضوع د ډېرې څېړنې وړ ده او زمونږ لیکوالو ته ښائی چه په دې باره کښې ډېر څه وا یکی . که څه هم دشخصیت په خصوص کښې خبرې ډېرې شوی دی بیا هم عام وګړی او و یو نکی دې لغت سره ښه آشنا نه دی کله کله دځینو نه دا اروو چه : دپلانکی په شخصیت کښې څه بحث نشته ، دهغه سړی شخصیت منو احمد دشخصیت خاوند دی که څه هم دهغو ی له دی خبرونه د شخصیت اصلی معنی نه فهمېږی سره ددې دومره معلومېږی چه دهغو دشخصیت ویلو نه څه قدرته دی مطلب ته اشاره شته او لنډ ډېر داعالی مفهوم ځنې څر ګند ېږی .

شخصیت څه ته وایه شی ؟ که وغواړ ودشخصیت د کلمې دمفهوم په شاوخوا کښې پوره څېړنه وکړو نو مونږ ته په کاردی چه ډېر مثالونه راوړو او دځو کر ښو په ځای څو پاڼې تورې کړو هر کله چه زمونږ مطلب یوازې دشخصیت دناروغیو تشخیص اودهغه علاج دی دا اوږد د ه تعریفات اومثالونه اورمرو دطوالت سبب ګرزی او اصل مطلب راڅخه پاته کېږی لهبلې خوا دصحافت ځانګی په شمار څوپاڼې دې موضوع ته پرې ایښی دی نو ښائی یو داسی مثال دلته راوړو چه هم بشپړ او هم لنډ وی زمونږ پښتانه داسی یو سړی چه ډېر و صفاتو خاوند وی په دې ډول ستائی : ـ پلا نکی دسلومنو ګوډی نه تکېدلی خوزه چکی ده که مونږ دم دپښتنی تعبیر سره دانسان غوره اوممتاز صفتونه ، قابلیتو نه (عقلی وی ، که بدنی) ښه خو یونه راغنډ کړو او وئی تکوو اود ګړی په شان خوزه چکی ځنی جوړه کړو هغه چکی به شخصیت وی .

څرنګه چه شخصیت د ګوښیو ګوښیو صفاتو د ترکیب څخه جوړ ېږی دار نګه دشخصیت خاوندان هم جلا جلا صفات اری ـ میرویس نیکه ، لوی احمد شاه بابا ، اعلیحضرت نادر شاه ددې خاوری هغه غوره او نومیالی شخصیتو نه دی چه مېنه مو پرې سر لوړې ده مګر دغه لوړ شخصیتو نه په صفاتو کښې یوځی سره جلا دی . دادری واړه زمونږ دهوا دنو ابغ دری واړه دتورې د سیاست اودعقل اود کیاست خاوندان دی . درې واړو په تدبیر او په مړانې زمونږ دهواد خپلوا کی

راکښلی ده سره ددې ټولو بیاهم هر یو ځانته ځانته صفات او مزیتونه لري، خصوصیتو نه اوقابلیتونه ئې کوښی دی .

## شخصیت څرنګه جوړ یږي ؟

دشخصیت په جوړیدلو کښې ډیر عوامل کار کوي یوله هغو مؤثر و عواملو څخه چه شخصیت ئې جوړیږي وراثت دی داعامل تر ټولو نو روعو املو غښتلی اواغیزه من دی داخو مونږ تل وینو چه دروغ سورتو پلرو نومیندووډ کی په ځان جوړ او تکړه اودنا روغو زیاتره ناروغه اوخوار نجی وی او ځکه چه بدنی حالات دعقلانی صفاتو سره ټینګه رابطه لري داعامل ترټولو مهم اودزیاتی توجه وړدی دوهم عامل چه دشخصیت په جوړیدلو کښې خورا موثراو خورا قوی دی اجتماعی اوثقافی محیط دی ثقافی محیطونه هغه پیاوړی محیطونه دی چه دوګړو په منځ کښې کلکه رابطه اویووالی موجود ، قوانین، عادات، ملی عنعنې پکښې منلی اوپه زړه پوری وی ، وګړی ئې دیوه بشپړ او پوره نظام تراثر لا ندی خپلواکی او آزادی واری یوائځی په داسی محیطونو کښې شخصیت جوړیږی اووده کوی .

کله چه هم نظام او دیسپلین عمل اوتدریب پوره قیود بلل کیږی اوسړی لاس خلاصی هو او هوس ته نه پریږدی خو په حقیقت کښې دغه قیود، دغه نظام اود یسپلین دسړیو شخصیت بشپړ کوی ، ترکاڼ دی که پښی، میرزادی که معلم، داسی هر سړی چه په یوه ټاکلی وظیفه په یوه مخصوص عمل بخت وی دغه کار اومشغولتیا دهغوی غړی ماغزه او پلی کلکوی ، ذهن اوفکر ئې روزی او هغوی ورځ تر ورځه په خپلو عملونو وظایفو اوفنونو کښې تکړه کیږی .

دا رنګه دودونو خاوندان ترېی کوره کهی خلقو په خوراز حمت اوربړ دی مګر دا رېړ او زحمت دهغوی همت اوړوی دهغوی اراده اوشخصیت تربیه کوی .

بل غښتلی اوقوی عامل چه دشخصیت په جوړولو کښې څرګنده اغیزه لري دافکار واو آراؤ بشپړوالی اوبشپړه آزادی ده که مونږ په خپلو کارونو، په خپلو افکارو او په خپلو وینا و کښې وا کمن نه یو هغه وخت به نه اوبد کته او تاوان زمونږ په نظر کښې یووی او په کارونو کښې به زمونږ شخصی ذوق او استعداد څه دخل ونه لری هلته به زمونږ اودیوه بیرو حه ماشین په منځ کښې څه توپیر نه وی چه دبل سړی په اختیار اواراده چورلی څرنګه چه وراثت ، اجتماعی محیط ، تعلیم، تدریب، کسب او کار د شخصیت په جوړیدو کښې موثر شمیره شی دا رنګه لوستځی، ښوونکی، ملګری ، هوا ، هواد، خوراك ، هم پوره تاثیر لری .

## دشخصیت ناروغی :

لکه چه انسان، څاروی، وني، بوټی هریو ګوشی ناروغی لری چه دځینو مخصوصو حوادثو په سبب پری اخته کیږی، دانسان شخصیت هم ځانله، ناروغی، ګوښی مرضلری که څوك تل په ځان پام ولری

او خپل ژوند په یوه خاص پروګرام روان کړای نه شي نو ممکنه ده چه له هری بدنی ناروغۍ څخه په امن پاته شي او که په خپل ځان ئې پام نه دراود او بې احتیاطۍ ئې کوله یا په هغه ځایو کښې چه ناروغی یکښې عامه ده استوګنه وکړی نو ممکنه ده چه په یوه رنځ او زیاتو رنځونو اخته کېږي یا به ئې والکی وی یا به ئې تبه یا به په نورو محیطی او اقلیمی ناروغیو اخته کېږی. دغسې ناوړه او فاسد محیطونه، ناوړه ښوونکی او ملګری، بې کاری او لټی او بې واکی د شخصیت د ناروغۍ جرثومې دی چه شخصیتونه ناروغه کېږي او د سړی همت، جرئت، استقلال او متانت وژنی. دا جرثومې زیاتره پر هغو کوچنیو بیا پر مراهقو ځوانانو یرغل ورووړی، د مراهق توب دوره په اصل ذات کښې د بحران دوره ده، هر سړی ته (پلار دی که ښوونکی) دا ښایی چه پر مراهقو، هغو کوچنیانو دېره توجه او زیاته پاملرنه واری که د بده مرغه داسې یو هلک چه په دی رنځ اخته شو نو بیائی رغېدل څه آسانه کار نه دی .

د شخصیت ناروغتیا وی لکه داء العظمه، داء الضعه، داء الجنسی بیل بیل مرضونه دی او د کوچنیو ګوښیو عواملو په سبب پیدا کېږی په دې ناروغتیاو کښې داء الضعه تر ټولو شدیداو دېری توجه او پاملرنی وړ دی، که څوک یوه پلا په دی ناروغۍ اخته شو نو علاج ئې هم دېر ګران دی نو دا دی چه خپل بحث او خبرنه په دې ناروغۍ منحصروو او د دې مرض په هو ترا تو او علاج کښې خبری اتری کوو .

## د ناروغه شخصیت علاج:

د دې ناروغۍ په باره کښې تر ټولو زیات ادلر (۱) خبری کړی، څر نګه چه هغه معتقد و یلی شعور با لضعه یا د عدم کفایت احساس هله په سړی کښې پیدا کېږی چه د هغه د حسب السیادت جذبه کمزوری شی په لمړی ځل د هغه دا عقیده وه چه بدنی یا خلقی عیب که هر څو و همی او بې حقیقته وی دار وحی مرض ځنی پیدا کېږی که د یوه هلک زړه ته داور غله چه دی په غوږ و ښه نه اروی یا جسما کمزوری یادونی ټیټه دی یا په کړه وړه او نورو او سما فو کښې تر هغو ولو ښیرته دی له دې وهم نه یو مرضی حالت پیدا کېږی او پر هغه دو مره ژور اثر اچوی چه هغو د رغیدنې امکان ئې نه وی دېر وړ کی شته دی او ښخوا تر دی هم ووا ولاوی به چه د همزولو لوړواله په ځینې او صافو او قا بلیتو نو کښې د هغوی د منا فسې جذ به راوښه کړ بده او هغوی ئې په کار راوستی دی دا جذ به هغه عالی او هغه فطری قا بلیت دی چه د بشر کاروان ئې د ترقۍ په لاره بېولی نو هغه وړ کی چه وچه په وچه دا وهم ور ولېږی او ځان تر هر چا و رو سته بولی او په ځای د دې چه په صحیحو موارد و کښې د هغو دا فطری غر یزه را وښه کړا نه دی . . . خپل ځان ناقص او بې کفایت وګڼی او اعتبار ئې له ځانه څخه ورک شی

(۱) ادلر د فروید د اتباعو څخه دی او لنز څه پخوا تر فروید مړ شوی دی.

هغه ناروغه دی اوعلاج ئې په کاردی چه باید وشی لکه‌چه دروحی طب پوهانو اتکلولی ده اکثره وکړی په‌ځینی وختو کښې په دې‌رنځ اخته کېږی دامرضی زما نه سم دحواد ثو او مقتضیاتو سره دهرچا په نسبت په اوزد واله‌او لنډ واله کښې فرق لری داعارضه په چا کښې لکه یوسپك والگی دلنډې مودی دپاره‌ښکاره شی او بیاپسی زررفعه شی په ځینو کښې‌خه زیاته موده وی خو بیا پخپله ښه شی ځینی نور دیوه بد نی نقص او عیب یادیوی نا قصی روزنی له امله په دې رنځ اخته شی‌اولکه مړه تبه په کلونو کلونو پرې‌اخته وی‌اور غید ن‌ئې نه‌وی .

دا رنځ په‌لمړی‌ځل‌ډېر سپك‌وی اوسړی پرې دومره نه‌ستوما نېږی خوچه وخت‌تېرېږی اوزمانه اوږدیږی هغومره پسی زیاتېږی‌اونیلی ښخوی . دا رنځ سړی گوښه‌گیری‌ته‌مایلوی یاپکښې دزیات اختلاط اوامتزاج غو ښتنه پیدا کوی‌دادوهم ر از ناروغان ډېر زر دخلقو سره اشنا کېږی دهرسړی سره ناسته ولاړه په هر کار کښې مداخله کوی دده دا هلې ځلې تولی‌ددې دپاره وی‌چه خپل عیب پکښې خوندی کړی اوخپلی کمزوری د خلقو دستر گو څخه پټی‌وساتی داډول خلق اکثره په لاس لاندی خلقو زور زیاتی کوی اوخو شی په خوشی ئې ځوروی که‌داسی‌خلق دبده‌مرغه د کمی علمی‌شعبې واکداروی اوډېده شامته معلو مات ئې‌هم لنډاوناقص وی‌نوددی د پاره چه‌لاس لاندی خلق ئې په نا پوهی پوه نشی یاپه‌کمی علمی مسئله کښې‌دهغه سره بحث اومباحثه ونشی تل‌خپل‌زیر دستان سپکوی اوبی سپور وستغو بل خه ورته نه‌وائی همیشه بړوس وی‌وچولی‌ئې تریوتیولی وی چاسره سمی خبرې نه کوی .

دا ناروغان په‌عمومی‌توگه‌په‌لاندی‌ډول‌دی :

۱ ـ ددی رنځو رانو ځینی کسان داسی کمزوری اوبی سیکه وی چه‌سمی خبری هم نه‌شی کولی اوڅه‌چه وائی‌پخپله‌پری پوهیږی نه‌چه‌څه‌ئې وویل چه پرلاره‌روان وی خوشی په‌خوشی تکرونه خوری او په سمه لارښوئېږی یاد ملگری پښه چیتوی یاد ومره ترور او بوله وی چه په تلوار تلو کښې پرلوښو پښه زدی‌اوماتوی ئې که‌دبده شامته چرته‌پردې نااشنا سړی سره مخامخ شه‌خبری ترې چورې هېرې شی اونه پوهیږی چه‌څه ووائی خوچه‌څه وائی هغه داسی په‌سوی سابیانوی‌لکه‌چه نیغ‌په‌لوړه غره‌ختلی‌وی ساه‌ئی لنډه‌لنډه کېږی په خبرو کښې‌ډېری غلطی ځنی‌خر گندیږی اوچه ځانله‌خیر مه‌شو هلته‌د اتول وضعیتونه تولی خبری‌غلطی گانی دده سترگوته ردیږی‌ور ځنی هغه مال‌پر غلطولاڅه چه‌په‌سمو خبرو هم پښیما نه‌دی اودائی خیال‌ته راځی چه‌دی‌خبرونه په‌اوریدونکو نورڅه فهمولی وی هر کله ئې‌چه داخبرې داغلطی‌گانی وریادی‌شی لکه‌غشی دده‌په‌زړه ننېلی‌او که‌یوائی‌ناست‌وی چغی‌اوساړه اوسېلی‌ئې‌په‌جگ‌آواز له‌خولی څخه اوزی .

دار نځوران که‌چیری‌کې مجلس تـه وبـلـل شی‌چه هلته‌هرراز دمدعا‌خبری کېږی

په سلو کښې پنځه کلمې دهغو په یادنه وی داځکه‌چه‌دی مجلس کښې دوی ټول خپل ځان ته متوجه وی خپله وضعه، خپله جامه، خپلې خبرې دنورو سره پرتله کوی او ځان د پاره دګوتی دنیولو ځای پیدا کوی‌چه له‌مجلسه ښخه ووتل په ځای ددی چه دخبرو اتر و تقریرونو ښخه ئې ګټه اخیستی وی اوی لوی غمو نه خپل کوروته وړی نو ددی له‌امله چه بله پلا په‌دا سی غمونو اوانديښنو وانوړی تل له‌داسی ځایو ښخه په‌ځنګ ګرځی او‌ډډه‌ځنی کوی .

۲ ـ دځینو ناروغانو دازړه ته‌ولیدلی وی چه‌دی شامتی دی زمانه له ده سره ورانه ده اوښېګنې ئې په‌برخه نشته داراز رنځوران په‌هر وخت اوهرځای کښې له‌خپل بخته شکایت کوی اودبده مرغه دائې هم زړه ته ولیدلی وی چه‌دی څه کار کولی نشی . داوهم کچنیانو ته په‌تېره بیا نجونو ته ـ پېښېږی ناروغه‌نجونی تش په همدی‌خبره‌چه دوی هلکان‌نه‌دی‌د خپلو بر خونه مروری وی تل ئې داغوښتنه ئی وی چه کشکی دوی هلکان وای یا کشکی هلك کیدای شوای .

۳ ـ ځینې په‌اجتماعی مناسباتو کښې ناقابله اوکمزوری وی دخلقو سره راشه درشه نشی کولی دخلقو نه‌شرمه ګرځی او که چېرې ګڼ مجلس ته‌ور پېښ شی‌په کم ګوټ کښې په‌سوټ بوټ ناست وی سربه ئې کښته نیولی وی که دکم کار د پاره له خپله ځایه ولاړشی یادخونی دیوه ګوټ نه بل ګوټ ته‌ورځی ده ته داسی سخته ښکاری لکه چه‌درund غرئې په‌شا اخستی وی که هسی چاورته وکتل لوری ورځنی ورك شی اوپه‌سمه لار غزار پېنړی .

٤ ـ څه‌نور داسی دی چه‌دهر نوی کار ښخه تښتی ځکه دوی پر خپل ځان باور نه لری اودکړ وجرئت یکښې نه‌وی په‌هر جزئی کار اوپه‌وړه‌خبره کښې متردد وی له‌ډېره احتیاطه یاله زیاتی وسوسی او ډاره پر پله نشی تېر یدی ځکه د هغه په زړه کښې دپله دړنګېد وېره وی اینا رنر مال‌اوځان تېریدل ئې په‌نظر کښې لېونتوب ښکاری .

٥ ـ یوراز نار وغان په‌دی ډول ناروغانو کښې لېدل کېږی چه داتقان عمل لیواله وی دعلم النفس پوهان‌دافراط پسندی‌جنون کمال بولی دهغوی داغوښتنه وی چه‌خپل عمل تریوه نهائې حده چه‌سر حدئی معلوم نه دی ور سوی اتقان دعمل او دفن ترقی د بشر د ترقی اوودانۍ تګ رازدی خوداپه‌دی‌صورت‌ممکنه ده‌چه‌هرشی‌ته ورخ ترورځی‌ترقی‌ورکانۍ چه دمخنی عمل ښخه شه وی ، خوهغه خلق‌چه سم دم‌یو موهوم حدئې ترنظرلاندی ساتلی او غواړی‌چه که هغه‌حد ته‌ئی عمل‌ترقی‌نه‌ئی کړی نوښکاره کوی‌دی‌نه داغوښتنه‌مرضی غوښتنه‌ده مونږ تاسو داسی خلق ډېرلید لی او وینو ئې چه‌هغوی‌په دې موهومی غوښتنه کښې تل پېرته پاته وی که‌یو د هغوی لیکڼ وال‌وی‌یوعادی لیکڼ ترسلو پېرو زیات اړوی‌را اړوی

کله ئي عبارت بدلوی کله ئي په مطلب کښې گوتې وهی آخر په ډېر و اړدولو رااړ ولو دومره ستو مانه شی چه تکی نور لیکلی نه شی او کار ځنی پاته شی .

٦ - دی ناروغیو کښې یو بل راز ناروغی هم ده چه پېژندنه ئی خو را گرانه ده ډېر ته له ډېر ودقیقو خلقو عام وگړي پرې پوهېږي نه دا راز خلق پرلاره تر هرچا دمخه ځی خبری جگی او په زوره کوی چه دبل چاخبری وانه اروی که څوك پرې تنقید و کوی هغه د ده غوږ وته ونه رسی ددې رنځورانو خبری کلکی اوږ دی وی په وضعه کښې متشامخ په جامو غوړ (شیکك) وی دا تظاهرات مازې یو مطلب لری هغه دا چه خپل نقص ئی پکښې خوندی شی که د مکتب زده کړی په دې رنځ اخته وی هغه به خو شې په خو شی ښو و نکو سره د صنف ملگر و سره په بحث مباحثه لگیاوی .

٧ - ځینی ناروغان خو را حساس، خو را سریع التاثر وی دینوی جزئی خبری دیوه ساده تکی نه له حده زیات متأثر کېږی که یو سړی دبل چا سره تو که و کوله یائې داسی خبره وویله چه هغه ئې له حقیقت نه خبر نه ویائې اساسی تکی ته پام نه وی کړی رازراز تاویلونه به ځنی کوی او خیال ته به ئې دا راځی چه دا تولی دده دسپکاوی دپاره وی کله دیوی جزئی خبری نه دومره متاثر شی چه دډېره خپگانه ئې اوښکی په مخ را وبهېږی، کله دډېره تاوه بدی ناخوالی وائې او ښکنځل کوی دا بدگمانی تولې ددې دپاره دی چه خپل ځان ورته ناقص ویا ړجن ښکاری . هغه دمکتب زده کړی چه نوی په لوست پیل کوی او دصنف ملگری ئې تردوی لږ څه دمخه وی زیاتره پدی حساسیتو نواخته کېږی او دهر یوه له پلوه بدگمانه دی . دښوونکو او پالونکو دا وظیفه ده چه د زده کړیو دا حالات تل دنظر لاندی وساتی .

٨ - رخه: که څه هم رخه پخپله اخلاقی مرض دی او دا رنځ لږ ډېر مونږ تا سو هر یوه کښې شته دی خو که داشی له خپلې اندازې څخه بهر شو او سړی ده رشی اود هرچا په نسبت رخه درلوده نو ځانته مرض او ځانته رنځ بللی شی .

ځینی داسی خلق هم پیدا کېږی چه دلټانو او دعاطلو خلقو سره رخه کوی او غواړی لکه هغوی دنورو داوزوېتی وی دا رنځوران تر هرچا زیات دعلاج وړدی، دا خلق چه داجتماعی مسئولیتو څخه ځان ژغوری او تولنه پری گټه نه ښکاري دشخصیت په شدیده نا روغی اخته دی .

٩ - ځینی وگړی په ځینې اعمالو کښې لکه لوبی، ورزشونه، رسم کښل، شعر جوړول، سازغږول او داسی نور شیان تر حده زیات جدیت څرگندوی که د هغوی مطلب پدې کښش او کوښښ کښې او لړ واله او مهارت پیدا کول وی نو د هغې نتیجه به هرو مرو ښه وی او که داجدیت مازی تصنعی شی وی او غواړی په دې سره خپل عیب پټ کاندی دا ناروغی اودشخصیت کمزوری ده .

١٠ - ځینې خلق چه په ځان کښې کم عیب یا نقصان احکلوی مازی دی، دپاره چه عیب ئې چاته

په‌ویر ژلولور (۱) نکړې په‌زړه کړا ‌ډېی　　پر تتلیو اور وې د غم نا تا ر
هیڅ‌روغی می په زړه نسته ستا له ځوره　　ېلو ي په ژړ ا ژړ مین له یار
له‌تېر یو دی اوښی خاشی له او ر یځیو　　چینې ژاړی په‌و رتېورتېستا له شنار
نه‌به لاس وا خلې له ځو ره نه به اورې　　نه‌به‌ملا (۲) کړی له‌ېی وزلو له ترار
نه به زړه وسو ځوي په هیڅا با ندی　　نه‌به پر ېو زی له ګر د ښته له مدار
نه به و صل کړ ې مین له بل مینه　　نه به در ملی (۳) تېږ نه دا فګار
ستا له‌لاسه دی‌پرا ته ژوبل زګېروی کا　　هر پلو ته تېی ز ړ ونه په ځار ځا ر
کله غوڅی کاندی مرا ندی‌د زړ ګیو　　کله تیر با سی و ګړی هو ښیا ر
کله تکی و ا چو ی پر نا ز ولیو　　کړه‌خیری کړی کړ ېوان د نمنځی‌چار (٤)
کله غور ځو ی وا کمن له پلازو نو　　کله کښېنوې په‌خاور وکی بادار

❀ ❀ ❀ ❀

زموږ پر زړونو دی‌نن بیا یو غشی ووېشت　　ود ی ژوبلله په د ی غشی هـزا ر
پر سوریو باندی ویرپر یو وت له پاسه　　محمد واکمن چه ولاړی په بل‌دار
یو وا ر سو اسیر پلاس د میر خمنو -　　انتقال ئی‌و کړه قبر لـه بل وا ر
په سماو (٥) ئی و دا ن آ هنګرا ن و　　په‌تیکنه (٦) و پردرست جهان اوځار
د محمود دژ وبلو رو پلا س کښېو ت　　چه غزنه ته ئی بـا تلی په تلو ا ر
ننګیا لیو لر ه قید مر ینه د ه ځکه ؛　　سه(۷) ئی‌و الو تله هساك ته پردې لار
ترنری- ئې غوره خا وری هډیره کـا　　د ز مر بو په ېېړیو (۸) کله وی خوار
په دې و یرد غورو ګری تور نمری سو ل　　په د ې و یر ؛ رنها‌تیا ره سو له د ښار
کوره خاشی رنمی او ښی له د ې غر و نو　　دا‌کړونګی(۹) سا ندی لی په‌شور هار
نه هغه زرغا ( ۱۰ ) د غر ونو د بید یا ده　　نه د ز ر ګیو په مسا د ی کتهار
نه غتول بیا زر غونېږ ی په لا ښو نو　　نه‌بامی (۱۱) بیامسیده کا په کهسار

(۱) اور=پېرزوینه متقی‌وپرهیزګار　　(۲) ملا=ملګری　　(۳) درمل=دوا　　(٤) نمنځی چار=
(٥) سماو=انصاف اصلاح　　(٦) تیکنه=عدل　　(۷) سه مخفف ساه
(۸) ېېړی-=زولانه　　(۹) کړونګی=آبشار　　(۱۰) زرغا = سرسبزی
(۱۱) بامی یو ګل دی

نه له غرجه (۱) بیا راځی کاروان دمینکو — نه را درومی غورته بیا جو پې دشار (۲)
دپښتو لی او ره تو دي او ښی تویته — مرغلری به نیسان نکړی تار
دا په څه چه «محمد» ولاړ له نړیه — په ویرنه ئې سو غور ټول سوګوار
نه ښکار ښېږی هغه سور دسور په لتو — نه ځلیږي هغه لمر پر دې دیار
چه به نجلیو په نڅا یکې خندله ، — چه به پیغلو کا اتڼ قطار قطار
هغه غور په ویر ناتار دوا کمن کښېنوست — هغه غورسو دجاندم غوندی سور آر
لاس دی ماتسه ای فلکه! چه دی وکا — محمد غوندی زمری د مړینی ښکار
شین زړګی فلکه ! ولی لا ولاړ یی ؟ — ای دغور غرونو په څه نسوی غبار ؟
مځکی ! ولی په اېږدلونه پر ېوزې ! — لاندی باندی سه ! چه ورك سی داشمار
چه زمری غوندی واکمن ځی له جهانه — چه خوك نکړی په نړی باندی قرار
سخ په تا اې محمده! دغور لمروې ! — په نړی به نوی ستا دعدل سار
ته پرننګه وي ولاړ په ننګ کې مړسوې — هم پر ننګه دی په ننګه کاځان جار
که سوری دی په ټټروېر کاندی ویرمن سول — هم به ویادی ستا په نوم ستا په تبار
په جنت کی دی وه تون (۳) زموږ واکمنه — هم په تا دی وی ډېر لور دغفار (۴)

## ۲ :- دسلطان شهاب الدین غوری پښتو پالنه (۵۶۹-۶۰۲ ه)

له تاریخی قیاس او معلوماتو ښکارېږی چه دې غوری شهنشاه دپښتو سره مینه درلوده او پښتنو شعراوته ئې په دربار کښې ځای ور کړی و ، او ډېر مخوروه . هلته به ئې پښتو سندری بوللی او هروخت به دشاه په جنګو کښې هم حاضروه ، مثلاً دپښتو پخوانی شاعر او ادیب «ښکارندوی» په دې دربار کښې پالل شوی دی او دمحمد هوتك له لیکنی څخه ښکارېږی چه ( ښکارندوی ) دسلطان شهاب الدین غوری ادبی مشاورو ، او پرشاه ئې ډېر قدر درلود ، دی داسی لیکی :- «ښکارندوی میشته دغورو ، او کله کله به په غزنه اوبست کی هم اوسېده . پلارئې احمد نومېده

(۱) غرج غرجستان یاغرشستان یاغرستان زمونږ د وطن تاریخی ځای دی یاقوت په معجم البلدان کښې وائی چه ددې کلمې اصل «غر» دی او حدودئی داسی ټاکی: لمرلویده هرات ، لمرخاته غور ، شمالاً مروالرود جنوباً غزنه .

(۲) دشار په شاوخوا کښې حدود العالم داسی لیکی :- «که قصبه او بشین است ومهتر این ناحیت را شار خوانند جائی بسیار غله و کشت وبرزو آبادانست وهمه کوهست» (ص ۵۸ حدود العالم) له دې ښکارېږی چه دغرجستان مشرئې «شار» باله .

(۳) تون=جای ، دظرف توری دی . (۴) پټه خزانه ص ۱۹-۲۰

او دغور دفیروز کوه (۱) کوټوال و، ښکار ندوی ، سلطان شهاب الدین والدنیا محمد سام شنسبانی په پادشاهی کښې مخور او ددرناوی خاوند و ، او هغه وخت چه هغه سلطان پرهند یرغل کاوه ، ښکار ندوی چه شاعر او عالم سړی و . هم د هغه سلطان په لښکرو کښې و او هسې وائي : چه ښکار ندوی په مدح کښې د سلطان محمد سام او سلطان غیاث الدین غوري دستاینې قصیدې لرې چه بوللی دي (۲) »

له پورته لیکنې معلومیږي چه دې سلطان پښتو ته په درنه سترګه کتل او داپوره ثابتوي چه د ټولو غوري شاهانو ژبه پښتو ده او پښتو ئې پوه په سره ویله ؛ ځکه چه د هر دربار شاعر مجبور دی چه د پادشاه په ژبه د پادشاه مدح او ستاینه وکړي . دلته نو د ځینو مؤرخینو هغه اشتباه چه غوریان ئې د پښتو پنامه ندي بللي بالکل رفع کیږي . بیهقی وائي کم وخت چه امیر مسعود (۴۱۱ ه) دورمیش بت دحصار دنیولو دپاره غور ته ولاړ . نو ئې دحصار خاوندانو ته دوه پوهان بوالحسن خلف او شیروان وروليږل چه ددوي په مینځ کښې ترجماني وکړي (۳) بارتولد مستشرق هم لیکي چه دغوریانو ژبه دومره جلاوه چه امیر مسعود دمترجم پواسطه دهغو سره خبرې کولې (٤) هولدچ د غور ژبه داسې لیکي : « اهالی آن بالسان مخصوص تکلم میکنند که مشابه به لسان اهالی خراسان نمیباشد » (۵)

له دې ټولو څخه څرګندیږي چه دغوریانو ژبه فارسي نه وه او دپټې خزانې په دلیل ضرور پښتو وه . دښکارندوی د آثارو په باره کښې پټه خزانه د محمد ابن علی البستي له خولې وائي : « چه په بست کې ما دده دبوللو غټ کتاب ولیده او له هغه څخه مې دغه بوللله چه د محمد سام علیه الرحمه ستاینه ده وکښله . (٦) » دده دا قصیده ډېره خوږه اود پښتو دادب لوړه نمونه ده :

### د سلطان ستاینه

دپسرلی ښکلو نکی بیا کړه سنګار ونه — بیائي ولونل په غرونو کښې لالونه

مځکه شنه ، لاښونه شنه ، لمنې شنې سوې — طیلسان زمردی واغوستنه غرونه

د نیسان مشاطې لاس د مچېد ودی — مرغلرو بانندې وښکلل بڼونه

دغټو لوجنډي (۷) خاندې وریدي ته — زرغونو بڼوکې ناڅې زلمی جونه

(۱) فیروز کوه دغوري شاهانو پایتخت و (۲) پټه خزانه ص ۲۰ - ۲۱ (۳) تاریخ بیهقی ص ۱۲۵ عبارت داسې دی :- « تا امیر حرکت کرد بر آن جانب دانشمندی را برسولی آنجا فرستاد ومرد غوری را ، از آن بوالحسن وشیروان تا ترجمانی کنند و پیغامهای قوی داد وبیم وامید .... »
(٤) جغرافیای تاریخی ایران بارتولد ص ۱۰۴ (۵) صفحهٔ ۲۱۱ دروازه های هند Cates of india ص ۱٦۲ کابل کالنی ۱۳۲۱ (٦) پټه خزانه ص ۲۰ - ۲۱

(۷) جنډي — ګل ، دا کلمه دقدماو په اشعارو کښې ډېره راغلې او د ګل په معنا ده . که څه هم اوس له محاورې لوېدلې ده مګر څرګنديږي چه پخوا ئې ګل ته جنډي وایه ، « لم جنډي » دمغوزك تراوسه په پښتو کښې مستعمل دی او هم تراوسه « جنډي خان » یعنی ګل خان نومونه په پښتنو کښې ډېر دي .

لکه ناوې چه سور ټيك په تندی وکا
هسې وګانډل (۱) غټولو سره پسولو نه

مرغلرې چه اورو وخونو ليه (۲)
په ځلا ئې سو رانه خپاره د ښتو نه

زرغونو مځکوکی ځل (۳) کا لکه ستوری
چه پرهسك باندی ځلېږی، سپين ګلونه (٤)

سپينې واوری ويلېده کاندی بهېږی
لکه اوښی د مين په کړ ېوانو نه

هر پلورنې والی بها ندی خاندی
له خوښيه سر وهی له سينګړو نه

هر پلو دګلو وږم دی لونلیء
ته وارا غله له ختنه کا روانو نه

دمسيح په پو به مړو ژوندون بيا موند
پسرلی مګر مسيح سو په پوکړو نه ؟

له مړو خاوروڼې آغلی (٥) ګل راويوست
وچ بېديا او غر ئې کړ له جنتو نه

سړی جاجی (٦) چه رامشت کړ رامشتګرو
ګهيځ چونی (۷) چه په بڼ وکا زغو نه

په بربڼ چه زغ دچونيونغو زېد ه سی
ته وا چندی (۸) سره پېودی اشلکو نه (۹)

دزلما (۱۰) تا پی را غلی دی پرجنډ يو
لکه پيغله غوټی کاندی مکېزو نه

د يو پلو مخ سور کړ ئی پسرلی دی
يو دبل په غاړه اچوی لاسو نه

دهندارو په څېر غرونه سپين ورنګن دی
چه پروا ورو باندی ځل وکا لمرو نه

په غور ځنګ غور ځنګ له خولې ځګونه باسی
لکه شڼ (۱۱) هاتی شنا کاندی سيندونه

نه به چونی په ستا يه دجنډ يو موډسی
نه به موډ سم د سلطان په صفتو نه

د شنسب د کها له ختلی لمر دی ـ
د پسرلی په دود ودان له ده رغو نه

الخ ....

---

(۱) وګانډل = دګېنې يا ګانې، ماضی صيغه ده، که څه هم اوس داسی فعل مستعمل نه دی مګر معلومېږی چه پخوا داسی افعال هم په ژبه کښې وه. چه نور مثالونه ئی هم په پخوانې ادب کښې شته لکه يونل، يرغالل، خونول يا نور... (۲) خونول، خونی = نثار، خونول = نثارول چه دا مصدر او فعل هم اوس استعمال نلری، فقط «خونی» شته.

(۳) ځل = ځلېدل، ځلښت. (٤) ددی بيت کلمات دشعری ضرورت له حيثه سره اوښتی دی، دبيت مقصد داسی دی:- «زرغونو مځکو کښې سپين ګلونه هسی ځل کا، لکه ستوری چه پرهسك باندی ځلېږی» (٥) آغلی = ښکلی، ښائسته، دا لغت دپښتو په وروستيو ادبياتو کښې هم ډير راغلی مثلاً عبدالقادر وايی: په لاری تللم په مخه راغله په مخ تر ګله ښائسته آغله
پير محمد کاکړ وايی: حصار دمينی په لوی ګړنګ شوم اوس رارسېږئی خپلو آغليو

(٦) جاجی = فعل دی، يعنی فکر کوی. اوس د الغت که څه هم ډېر مستعمل نه دی مګر دځينو ښتنو په منځ کښې لا شته. (۷) چونی = بلبل، کاکړان ئی «خاچونی» بولی
(۸) چندی يعنی شاعر، چه دا کلمه ډېره پخوانی آريائی کلمه ده او تر هغه وخته پښتو ژوندی ساتلې وه.
(۹) اشلك يعنی شعر چه دا هم پخوانی پښتو کلمه ده (۱۰) زلما = زلميتوب (۱۱) شڼ = مست

اوهم دارنګه ملکیار د پښتو پیاوړی شاعر په دې دربار کښې روزل شوی دی چه د ملکیار مفصل ذکر د پښتانه شعرا لمړی ټوک په ٥٤-٥٥ مخو کښې راغلی دی .

## ۳ :- سلطان غیاث الدین غوری ( د ٥٦٠ هـ ، حدود )

ددې سلطان په دربار کښې هم پښتو قصاید لوستل کیدل او زمونږ پخوانی شاعر « تایمنی » ددې دربار شاعر و، ددی شاعر پنامه په غور کښې یو قوم شته چه دنیکه نوم ئې تیمن و، خنګه چه تاریخ څرګنده کړې ده تیمن د کاکړ زوی دی (۱) چه د کاک نیکه مزار د هرات د مسجد جامع په ووره کښې دی او ما لیدلی دی . نو دا څرګندیږی چه د تیمنو ژبه هم د سلطان غیاث الدین په وخت کښې پښتو وه - دده څو بیته چه د سلطان په مدح کښې ئې ویلی دادی :

نن زه غږیږم په صفت د سلطان
چه دی با دار غازی ملک د جهان

د فیروز کوه او غور ربنـاله ده ده
هم د تیرو تورو بر بنساله ده ده

چه توره و کازی چړتون کی خالی
غلیم ئې کله کړی په تو ره سیالی

غیاث الدین د غور زمری عالیشان
د اسلام دین دده په توره روښان

❀ ❀ ❀

غیاث الدین د جهان لمر دی نـا
عالم له ده د بربهره ور دی نـا

هند ئې روښانه په اسلام کی نـا
له ځانې خو ښ خیر الانام کی نـا

چه ئې په غور کی نیلی زین کی نا
پر کافرانو ئې نا ورین کی نا

تل دی بری وی دغازی پر میدان
زه « تایمنی » ستاینه کړم د سلطان (۲)

## ٤ :- د سلطان حمید لودی پښتو پالنه ( ۳٥١-۳۹٠ هـ )

ځینې غولیدلی دی وایی دلودیانو کورنی پښتانه نه وه ، مګر دا سهوه ده ځکه چه د لودی شاهانو کورنی علاوه پردې چه پښتانه وه ، د پښتو ژبی مینان او شاعران هم وه او په پښتو کښې ئې خو ازه خوازه شعرونه ویلی دی او پخپلو منځو کښې ئې شعری مناظرې سره کولې ، مثلاً کوم وخت چه شیخ حمید د ملتان پاچاشو ، نو ئې خپل وراره شیخ رضی پښتونخوا ته ولیږه چه دغو غرو خلق د اسلام دین ته را وبولی ، شیخ رضی راغی دوه کاله د کسې په غرو کښې ګرزیده او هلته ئې ډېر مخلوق مسلمان کړل (۳) په دې وخت کښې د شیخ حمید زوی نصر په ملتان کښې د ملاحده له لاستاځو سره کښیناست اوله دوی څخه ئې دالحاد اواسما عیلی فرقې عقاید زده کړل او د دوی په اعتقاد وګرو هیده چه شیخ حمید وفات شو نو ئې پر ځای نصر کښیناست او دالحاد ترو یج ئې غو ده کړ

(۱) خورشید جهان . (۲) پښتانه شعرا ۵۷-۵۸ مخ لمړی ټوک . (۳) پټه خزانه - ص ۲۹

اوقر امطه یې را و ستل، شیخ رضی چه سو چه مسلمان و ، خپل و را ره « نصر » ته ئې دا سې یاد کې و کښل اووائې ستول(۱):

| | |
|---|---|
| دالحا د په لور د ی تر پلل | گروه(۲)دی زموږ و کوراوه(۳) |
| موږرو نولی په ز یا ر نه ـ | تا پـه تـو ر و تـو را و ه ـ |
| ارغون(٤)ولی گرو هید لې ـ | چه دی گوښې ( ٥ ) اډ ا و ه |
| هغه گروه دی اوس آډه(٦) کړ | چه پلـر و د ی ر نـا و ه |
| لو دی ستا یه نا مه سپك سو | کـه هـر خـو مـو د ر نا و ه |
| نصر ه ! نه مو یې له کها له | لـو د ی نه ئې پـه کـا و ه (۷) |

زموږ ر غا (۸) ده ستا له گر و هه

د و ر ځلو ی ( ۹ ) په ر غـا و ه

نصر لودی ته چه داعتاب ورسیده نو ده ئې دا سې غبرگون و کا

| | |
|---|---|
| دا لحاد په تور ، تورن سوم | زه ار غو ن خو ملحدنه یم |
| زمادښنه هسی تورا(۱۰) کړی | کـه ملحدیم د د ښـنـه یم |
| له ا سلا مه نه تـر پلمه ـ | تـورا نو څخه په تـر پله یم |
| گروه مې هغه ار غو نې دی | اوس هم کروږ په ارغونه یم |
| داسلام پر هسك په ځلم(۱۱) | و تو را نو ته تیا ر ه یم |
| دلو د ی ز و ی سنتی یم | د حمید له لو ډکـها له یم |
| تو را نی دښن چه و ا یی: | ز ه له گر و هه په آ ډه یم |
| دائې تور تاسی در و هوی | زه مومن ستـا سی په تله یم |
| دد ښنو وینا وی مغنږه(۱۲) | زه لودی یمه خوزه یم(۱۳) |

---

(۱)پټه خزانه ص۳۲ (۲) گروه=دین ، گرو هید ل عقیده در لودل، خوشحال خان وایی :

نه ئې زډه په مانر مینږی نه گرو هیږی خدایه څه می سرو کـار شوله کـافره ؟

(۳) کورول = کوره کول ، ویرا نول ، په محا وره کښې وایی «زما خط دی کوره کړ! »

(٤)ار غو ن = پخوا (٥)گوښې :په دې اشعا رو کښې د«وروسته» په معنی ر اغلی ، مگر اوس د« تنها »معنا ښندی (٦) آ ډ ه، دا ډول څخه جو ډشوی ، چه او س دا لغت له منځه تلـلی

(۷)کـا وه ، که څه هم دا لغت دلته د کو ل له مصد ره ښکا ری ، چه د « کړه» او فعل معنا ور کوی ، مگر زما په عقیده دا لغت ، د آر یائې لغتو« کاوه ، کیانی ، کی »سر ه اړه لر ی

(۸)رغا= رغول ، چه اوس هم دا لغت د مناسباتو پر قطع د لالت کوی ،وایی« له ماخخه ئې ورغوله» یعنی منا سبات ئې را سره پرېکړه. (۹)ورځلوی=قیامت:یعنی لو یه ورځ (۱۰) تورا= افترا،تهمت (۱۱) ځلم = ځلېږم .(۱۲) مغنږه = مه غوږ باسه ، مه نغوزه . (۱۳)پټه خزانه ص ۲۹ ، ۳۰

ښه نو ، اوس ایا سره لەدې پورته اثباته ویلای شو ، چەلودی کورنۍ پښتانه نەوه ؟

یه ، پەدې دربار کښې هم دپښتنو شاهانو دنورو دربارو په شان پښتو ژبه ژوندۍ وه اوروزله کېدله .

بلکه دا جمله دد وی د پښتنې احساساتو ښه نمایندگی کوی چه وایی : -

«زه لودی یمه خو زه یم ! »

## ٥ : - دسلطان فیروزشاه پښتوپالنه (٧٥٢ ﻫ)

پښتون سلطان فیروزشاه دسالار رجب زوی اودغازی ملك خان مشهور په « سلطان تغلق شاه » ور اره و ، چه دخپل اکا زوی سلطان محمدشاه تر مرگ وروسته دمحرمی په ٢٤ (٧٥٢ ﻫ) کال په هندوستان کښې شنهشاه شو(١) سلطان فیروز شاه دهند دمد نیت دپاره ښه خدمتونه وکړه ، ښا رونه ئې جوړ کړه له ډهلی څخه ترا گرې پوری ئې سړك بوت ، چه وروسته د«شیرشاه» په نامه مشهور شو ، دەپخپلەدرملتونه ، ١٠٠ حمامه ، ١٠٠ هدیرې ، ١٥٠ ځانان ، ١٠٠ پلونه جوړ کړی دی (٢) .

سلطان فیروز شاه ښه علم دوستەباچا هم و ، دده په امر «دلائل فیروز شاهی» پەحکمت طبیعی کښې «تاریخ فیروز شاهی» پەتاریخ کښې دوه کتابه ولیکل شوه ، بلکه ده پخپله هم د«فتوحات فیروزشاهی» پەنامەیو کتاب لیکلی دی (٣) اودفیروزیه پەجامع کښې ئې په ډبره کښې کېښلی دی (٤) پردې توګه سربېره سلطان فیروز شاه دپښتو ژبی مین هم دی او پخپل دربار کښې ئی ځای ورکړی و ، حتی دده پەدربار کښې عزت اولوړ تابه پەپښتو ژبه پوری تړلی وه که دچا پښتو ژبه زده وای هغه ډېر معز زو ، اوا متیا زئې در او د شیر محمد خان په خورشیدجهان کښې لیکی :-

« . . . جز وسیلهٔ پښتوویښتو گوئی دردربار فیروز شاهی احدی‌را پیش‌قدمی مقدور نبود ، وطائفهٔ افاغنه رافیروزشاه ازتمام شرفا عزیز تر می‌داشت وچندمو اضع ومساکن واماکن که افاغنه درهندوستان بناکردند، درعهد آن پادشاه عالم پناه بود (٥) »

داپښتو او پښتنوالی پالونکی شهنشاه تر ٣٨ کالو پاچهی وروسته دروژې په ١٨ په ٧٩٠ ﻫ کال وفات شو (٦) .

---

(١) د ١٣١٥ د طلوع افغان کالنۍ ٧١ مخ ، تاریخ سندسید معصوم.

(٢)فرشته ، تاریخ هند (٣) فرشته ص ٢٧١

(٤) تاریخ فیروز شاهی ، تاریخ هند .

(٥) خور شید جهان ص٧٢ (٦) تاریخ سند، تاریخ هند، دمستر نکولاس .

## ٦ : ـ دسلطان بهلول لودی پښتو پالنه (٨٦٠ ﻫ)

داپیاوړی باچاهم دلودیانو له کورنۍ څخه دی چه پرهندوستان ئې حکمرانی کوله ، داسلامخان تروفات وروسته ده استقلال وموند اوتر ډېروجنګو وروسته ئې په ډهلی کښې پرځان خطبه وویله او سکه ئې ووهله ، پانی پت اولاهور اوهانسی اوحصار اوناګور ئې دملتان ترڅنډه پورې و نیول ، اود هند وانو دراجګانو سره ئې سخت جنګو نه وکړل ، پواته دېرش کاله ئې پرهندوستان سلطنت وکړ ، ډېرعادل اوعالم باچاو ، په ٨٩٤ ﻫ کال وفات شو (١)

دې شهنشاه دپښتو ژبې سره ډېره مینه درلوده اوپخپله هم فی البدیهه ویونکی اوشاعرو ، وایی چه خلیل خان نیازی دهندوستان دبرسات په موسم کښې دا لاندې رباعی د سلطان په مدح کښې انشا کړه اود ده په مخ کښې ئې وویله :

خړی اوریځې ژاړی له پاسه      کویله (٢) زغ کا بېلتون له لاسه
په ، هغه لونی ګوهر په خول ستا      دا مرحبا کا ستا زموزموا سه

سلطان سمد ستی دار باعی و ویله :

ملك به زرغون کړم په ور کړه راسه      ګوره او ریځې ددا د له پا سه
خول می دعدل په درو رون دی      جهان به زیب مومی زماله لاسه (٣)

## ٧ : ـ دملی قائد میرویس خان پښتو پالنه (١١١٩ ﻫ)

دې ملی قائد که څه هم پرځان دشاه نوم نه دی ایښی ، مګر ټولو پښتنو په مشرتوب منلی و ، دې قائد لکه دپښتنو دویښ والی سره چه ئې مینه درلوده پښتو هم با ندی ګرانه وه ، او دپښتنو شاعرانو قدر ئې کاوه . دپښتنودا لمړی مشردی چه پخپل مهم اقدام کښې ئې د رحمان بابا له روحانیته مرسته وغوښتله اولکه ټول پښتانه چه رحمان بابا ته عقیده لری ده هم په مشکلو ملی مسائلو کښې رحمان بابا پوښتیده اودپټی خزانی لیکونکی دخپل پلار له خولې داقصه داسی لیکلی ده ، چه یو ورځ ئې پخپلو ملی مقاصدو کښې درحمان بابا دیوان خلاص کا هسی شعرونه وو :

زه مکتوب غوندی په پټه خوله ګویا یم      خاموشی څما تیری کا تر غوغا څما
کښت دعشق په تودوه زمکه امان چیری ؟      سمندر بویه چه زیست کا په صحرا څما

بله ورځ چه دقندهار په مانجه کښې ملی جرګه وه ، هغه وقت بیا حاجی میرخان مغفور ، له رحمان بابا څخه دا بیتو نه ولو ستل !

چه آسمان ئې مخ پټ کړی په سحاب و      خدای وما وته ښکاره کړ هغه نمر بیا
چه رقیب راته ترلیء په زنځیرو      خپل حبیب راباندی پرانیت هغه ور بیا

---

(١) پټه خزانه ص ٣٢    (٢) کویله : په هند کښې یوخوش آوازمرغه دی . (٣) پټه خزانه .

په و صال ئې منت بار او سه ر حما نه! (۱) په صدف کښې دخل نشته د گوهر بیا
زمونږ د ملي قائد میرویس خان کو رنی یوا زې د پښتو سره مینه در لوده ، بلکه د پښتو
ادب ته ئې ښه‌ښه خدمتو نه هم کړي دي ، علاوه پر دې چه ددې کورنی نرو پښتو ته په‌ښه ستر گه
کتل ښځو ئې هم خپله ژ به له نظره نه ده ایستلې، ملا میرمن نازو دمیر ویس خان مور دپښتو یوه
زبردسته شاعره وه اود پښتو دادب سره ئې دزړه مینه درلوده او دپښتو دادیبانو په لمړی تولی
کښې دریږي ، وگوره‌ئی ، دې‌میر منې په دې‌لاندې رباعی کښې د ژوندون د بدبینی اوخوش
بینی دوا ړی فلسفې خنگه ښې ځای کړی دی چه وائې:

سحر که وه ، د نر گس لیمه لانده | څا څکې څا څکې ئې له‌ستر گو څڅیده
ما ویل: څه دی ، کښلی گله اولې ژاړي؟ | ده‌و یل: ژوندمې دی یوه خوله خندیده (۲)

نو د ملي قائد میر ویس خان کورنی د علم او ادب کورنی وه ،او خپله ژ به ئې
تر یو ې او زد ی دور ې ورو سته ؟بیا راپا څوله اوددر بارژ به ئې کړه.

## دده په مشرتوب کښې پښتانه شاعران:

۱ـ پښتون سپه‌سالار سیدال‌خان ناصر چه د ابدال‌خان زوی او با بړ ی زی ناصرو . پلار ئې په‌دیله
کښې اوسیده چه د «وازی‌خوا» په‌سر یو ځای دی(۳) سیدال‌خان ناصر دتوری سره علم هم
درلود اودخپلې ژ بې ښه شاعرو ، داخو بیتو نه دده دبدلې دي :

یـار مـا لـه هسې گـر ان شـو | را تیر تر تو ل جهـا ن شـو
نـو ر نـه و ینـم پـه ستـر گـو | جهـان تول راته جـانـان شـو

۞ ۞ ۞

دو ې زلفې دې اوزدې کړې | پر مخ دې را خپرې کړې
سرې اشر ېی دې په‌تندې باندې سپرې کړې | گرزې په باغ کښې په‌گلو نو کښې نخرې کړې
په اور دې وسوم یا ر نه | را ته اورتازه بوستان شو

۞ ۞ ۞

شبنم پر گـلو ښکا ر ی | زما او ښکې داری‌داری
خوناب ځی ستا له‌غمه‌زما په مخکې‌لاری‌لاری | تما مه شپه کم تېره‌په ژړا په ناری ناری
ښکاره سوچه‌مجنون یم | لېونتوب‌می‌اوس‌عیان شو

۞ ۞ ۞

۲ :ـ ملا پیر محمد میاجی‌دملا سرور اخندزوی و،چه‌ملا سرور له‌میا فقیرالله صاحب څخه‌استفاضه
کړې‌وه اوملا پیر محمد‌له‌خپله پلاره‌فیض وموند ، ملا پیر محمد دحاجی میرخان سره‌ملگر ی و،او

(۱) پټه خزانه ـ قلمی ص ٤٦ ـ ٤٧ (۲) پټه‌خزانه
(۳) پټه‌خزانه‌ص ۹۱ ـ ۹۳

بادشاه محمود سره اصفهان ته ولاړ، او د روم علماو ده ته د «پیر افغان» لقب ورکړ (۱) ده یو کتاب په اخلاقو کښې لیکلی چه نوم ئې «افضل الطرایق» باندی ایښی او بل ئې «القرا یض فی ردالر وافض» کتاب تالیف کړی دی، دا کتابونه په پښتو او نظم دی. ملاصاحب د پښتو ښه شاعرؤ چه اشعار ئې په پټه خزانه کښې راغلی دی.

۳:- بابو جان بابی چه د کرم خان زوی و، په اتغر کښې اوسیده، دی هم د حاجی میرخان ملګری او د هغه له خوا په کلات کښې حاکم و (۲) په ۱۱۲۹ ه کال ئې د «شها او ګلان» قصه په پښتو نظم کړه او نوم ئې قصص العاشقین باندی کښېښود. دده دا بیتونه له پټې خزانې څخه رانقلوو:

## عشق

| | |
|---|---|
| عشق یو هسی تو ر یالی دی | چه پر هر ځای ئې بر ی دی |
| دعشق اور هسی سو زا ن دی | چه سو ځلی ئې جهان د ی |
| زړ ه بی عشقه کله زړ ه دی | چه بی عشقه ز ړه دمړ ه دی |
| نه دی عشق په یو ه ر نګ | کله صلح، ګهی جنګ |
| پښتا نه کا ند ی متل | چه دی خوږ تر شا ت عسل: |
| «چه بی عشقه سر کدو دی!» | تش بی مغز ه یولا دو دی |
| زړه بی عشقه په کا ر نه دی | هم هر زړه سزاو ار نه دی |

دپا کانو عشق سز ادی
اما نت دا دمو لاد ی

٤:- داؤد هوتك چه محمد هوتك د پټې خزانې دلیکونکی پلار دی د اپښتون د حاجی میرویس خان سره ملګری او د هغه ملی مشر سپه سالارؤ.

داؤد هوتك د پښتو ښه شاعرؤ دار باعی دده ده:

| | |
|---|---|
| چه دچا په زړ ه کی اور د مینی بل سی | په اور بل ئې لمبی ګهی حال ئې بل سی |
| اور د مینی کله مری د زړ ه له مینی | دا اور بل مینه که تل د زړه په تل سی (۳) |

دی په ۱۱۳٦ هجری وفات او په کوکران کښې ښخ شو.

۵:- ملانور محمد غلجی د ملا یار محمد زویؤ او پر ملی قایدئې ډیر قدر در لود، هغه وخت چه ملانور محمد اتیا [illegible] ؤ د ملی قاید میرویس خان په کاله کښې د ښځو او کچنیو نجنو معلم و تا کل شو او هغوی ته به ئې لوست کاوه ځکه نو پر میرویس خان ډیر ګرانؤ، د ملی قاید تر مرګ وروسته ئې یو کتاب [illegible] نافع المسلمین » د شاه حسین په نامه و لیکه، چه ددې کتاب یوه نسخه ما پرو سږ کال پښتو ټولنې ته

---

(۱) (۲) پټه خزانه، قلمی. (۳) په دې رباعی کښې د تجنیس صنعت ښه ځلیږی.

وړاندې کړه اواوس هلته‌ سته، داعالم په احادیثو کښې ډېرتکړه ؤ اودشاه‌حسین په عصر کښې ئې په پنجوائي کښې دشرعي علوموتدریس کاوه په‌پښتوئې‌شعرهم‌وایه شعرئې صوفیانه رنګ لري دا مخمس دده دی :

تهٔ دخدای له‌حکمه مه‌غړ وه‌غاړه نیک‌اخلاق کړه‌ته‌طلب‌اوښه‌خوی‌وایه

تضرع کړه‌خپل‌صورت کړه‌وچه ناړه ته‌له ختو یې جوړ سوی تن‌و یجاړه

بیداري کړه‌په سهارکې زمادلداره (۱)

## ۸-دزلمی‌تولواک شاه‌حسین پښتو پالنه(۱۱۳۵ هـ)

زلمی‌شاه حسین‌د ملي‌قاید میرویس‌خان زوی دی‌چه دربیع‌الاول په۲۳په (۱۱۱٤ هـ) کال دکلات‌په سیوری کښې‌پید اشو. دذیحجة الحرام‌په۲۸ (۱۱۲۷ هـ) چه‌میر یس‌خان‌و فات شو، دی‌خورلس کلن‌ؤاودخپل مشرورورشاه‌محمودسره اوسیده په۱۱۲۹ هـ،چه‌عبد العزیزدشاه‌محمود اکا‌مړشو نوشاه‌محمود په‌قندهار کښې‌پاچاشو ، په۱۱۳۵ هـ ئې خپل‌زلمی‌ورور شاه‌حسین پاچا کړ چه‌له‌قندهار تر فراه‌بیاتر غزنی‌پورې ئې‌حکمرا نی کوله(۲) او تر ۱۱۵۱ هـ پورې ئې پاچهي وکړله (۳) دازلمی پاچا د پښتو خوږ ژبی شاعرو، د پښتو په خد مت کښې‌ئې تر هرپښتون پاچاډېر زیاروکیښی اوخپله‌مینه‌ئې ورسره ښه څرګنده کړه .

دې زلمی‌پښتون له‌هغه وخته چه‌دمشرتوب واګې‌ئې پخپل لاس کښې ونیولې، پښتانه ادبا اوشعرائې پرځان راغونډ کړه اوهرکله به‌ئې ددوې سره ادبی‌جرګې اوپښتني مجلسونه کول، پخپله به‌ئې‌اشعارویل، دنورو اشعاربه‌ئې‌اورول. دپښتولیکونکي اوشاعران به‌ئې‌نازول .

دزلمی‌شاه‌حسین‌دوره هغه‌لمړی دوره ده چه‌پښتوته اساساً‌توجه‌شوې‌ده اوپه‌پښتو کښې ښه‌ښه لیکونکي اوشاعران میدان‌ته راوتلي‌دي، یاپه‌بل عبارت لکه پارسو ژبه‌چه په غزنوي دوره فخرکوي همداشان بایدپښتو په‌دې‌دوره ووياړي اومونږهم‌باید دا دوره دپښتو د‌اساسي‌ژوند دوره وبولو . هو ، داديوه‌پښتون پاچالمړی دربار دی چه محمدهوتك دپښتو پیاوړی ادیب‌ته امرورکړشو چه‌دپخوا اومعاصرو پښتنو شاعرانو تذکره ولیکي اودهمدې در بار برکت دی چه‌دپښتوادب ۱۳ سوه کاله عمرومونږ اودهغه‌وخت دادب ښکلي نمونې‌ئې په‌پټه‌خزانه کښې راته وساتلې، دپښتوپیاوړی ادیب‌هوتك ددې‌تذکرې باعث‌داسی لیکي:- «... زه‌چه محمدهوتك يم اوپه‌اصل پښتون په‌قندهار کې اوسم ، له‌ډېره ده ، چه‌په‌ویلو دداسې‌ویناو ، بخت‌یم اودشپې او ورځې مې هم‌دغه کاردی اوداډېر وقتونه تېر شول، چه‌ماغوښته‌چه زه‌دپښتنو شاعرانو تذکره وکاږم اوددوی احوال‌سره راټول کاندم ، مګر زمانې‌ماته فراغ نه راکا ، او دا هیله‌مې

(۱) پټه خزانه - ص ۸۷ (۲) پټه خزانه ص ۵۳ - ٥٤ (۳) پښتانه‌شعرا س ۲۱۸

په زړه کښې وچه سوه . . . . . .

نو زمازړه فارغ سو له اندوهه او قلم می راوا خیست، هغه وقت چه زما په اراده کې خبر سو زمونږ د پښتو نخوا دستر گو تور امام المسلمین...... شاه حسین الطاف ئې ښکاره کا چه داخپله اراده پوره کاندم او د پښتنو شاعرانو حال سره را ټول کاندم ، ځکه چه زموږ پادشاه او دنیا لم خپلو دزړه سر شاه حسین خلدالله ملکه وسلطنته پخپله هم دښی وینا خاوند او د پښتنو د شعر شوقمن دی، نوما وغوښته چه ژر ژر دا کتاب و کښلی سی او د پښتنو د شاعرانو احوال ټول کړ سی . . . . (۱) »

نو معلومه شوه چه پټه خزانه هم ددې زلمی باچا په امر او تشویق لیکلې شوې ده . علاوه پر دې دده په دربار کښې پښتو اشعار و ته هم هغسې جائزې ور کولې کېدلې لکه چه پخوا پارسی اشعار و ته ور کړې شوی وې .

د پټې خزانې مؤلف وایي: چه یوه ورځ دباچا په قصر کښې مجلس و، فضلا او علما سره را ټول وه ناځاپه احوال و شو چه قاصد راغلی دی او پیغام ئې له لیری ځایه راوړی. ملا زعفران چه ددې دربار ښه شاعر و، دبانډی ووت ، یو گړی پس بیر ته مجلس ته راغی، او دیوې فتح زیری ئې و کا ، او خو بیتونه ئې عرض کړل :-

زلمی باچا دفتح په زیری کښې ژر زعفرانی شال ملا زعفران ته ور کا ، او ددغه مجلس ټولو حاضرینو ته ئې شالونه وښندل(۲) او یامثلاً ریدی خان مهمند چه خلور زره بیته یو کتاب لیکلی و او نوم ئې «محمود نامه» وه شاه حسین زرطلاوی صله ور کړه .

علاوه پر دې بهٔ دې زلمی پښتون په هفته کښې یوه ورځ دقندهار علما او فضلا راغونډول، علمی او ادبی مجلسونه به ئې کول، چه محمد هوتك داحال داسی لیکی:-

« . . . پادشاه عالمپناه په ارگ کی دقندهار ، هغه قصر چه نارنج باله سی هلته په هفته یوه ورځ دربار کا ، په کتبخانه کی، او په مجلس کی علما جمع کېږی او شعرا او فضلا ټولوی زه محمد هوتك کاتب ددې کتاب هم په دې مجلس کی یم او د پادشاه ظلّ الله اشعار او ابیات په قلم کاږم او کتاب د دیوان ئې مرتب سوی دی، کله په پښتو اشعار وایی او کله فارسی ژبی ته هم میل کا او استاد العلماء ملا یار محمد ته ئې قرائت کا . چه سهو وسقم ځنی زایل کا ، او د پادشاه په اشعار و کی لږ سهو لیده شی او علمائې ټول په بلاغت او فصاحت قایل دی او سماع ته مایل...»(۳)

همداوه ددې دربار پښتو پالنه . دلته باید داهم هېره نشی چه ددې زلمی پاچا سره دوه منوره پښتنه خور هم د پښتو په پالنه کښې ټینگه ملگرې وه ، او پخپله ئې هم ښه خوا زه خوا زه

(۱) پټه خزانه - د کتاب مقدمه

(۲) پټه خزانه ص۵٦ (۳) پټه خزانه ص۵۵

پښتو شعرونه ویل او هر کله به ئې ورور ته په مهمو کارو کښې مشوره ور کوله ، محمد هوتك وايي : -

« بي بي زینبه ، ډېره هوښیاره اوپه مهماتو دامورو عالمه ښځه ده ، او دپادشاه جمجاه شاه حسین په امورو کی تدبیر کا ، اوهر کله پهرای صایب مشکلات د امورو حل کا ، اوپادشاه دزمان ئې پهخبرو عمل کا ، اونصایح ئې اوری . دا در شهوار دصدف عصمت ښه ښه شعرونه هموایی اودموزونانو اوشاعرانو قدر کا ، دواوین دشعرا هر کله لولی او له مضامین شیرین ئې کام شیرین کا ، عمر په عبادت د خدای اوتلاوت دقران شریف تیروی ، اومخدراتو دحرم دپادشاه ته درس او کښل اولوستل ورښئی ... (۱) » دې میرمنی دخپل ورور شاه محمود پهمرگ یوه ډېره سوځوونکې اوله پښتنی احساساتو ډکه مرثیه ویلې ده چهمتأسفانه دځای دتنگوالی له کبله مودلته عرض نهکړای شوه . (۲)

اوس بهپخپله ددې زلمی پښتون پاچا یوهبدله دنمونې دپاره لهپټې خزانې څخهرانقل کړو:

بیلتانه دی دغمو په چپاو چور کړم — پهتیارو کیدهجران ئیله تا دور کړم
بیلتانهدی هسیاوښکی راخپری کړي — ستادفکر پهگرداب کیتل عبور کړم
دفراق پری می کښېوت و مری ته — پهجهان کی ئې رسوا لکهمنصور کړم
په وصال دی هم نا ښا دیمه دلبری ! — دبیلتونفکر پهزړه کی ناصبور کړم
دبانو غشی می و خوړ پهځگر کی — غمازانو په غمز و غمز و مهجور کړم

خلق یاد زما ، د عشق په لیونو کا
زه « حسین » محبت هسی مشهور کړم

اعلیحضرت شاه حسین دپښتو سرهداسی مینه درلوده ، چه دپټې خزانې دمؤلف په قول ده کاتبان پیښور ته واستول چه له هغه ځایه درحمان بابا ددیوان نقلو نهراوړی ، چهلهدغه څخه دده دپښتو مینه اوادبیذوق ښه ښکاری .

## ددې دربار پښتانه فضلا او علما:

۱:- دشاهحسین استاد افضل العلما ملایارمحمد هوتك چه لوی عالم و ، اوپه فقه کښې ئې د« مسائل ارکان خمسه» پنامه یو کتاب لیکلی دی اودپښتو ښه ادیب و .

۲:- دهغه وخت دقندهار دجامع امام ملامحمد یونس توخي و ، چه دملا محمد اکبر زوی اوددېرو علومو تدریس ئې کاوه ، اوپه پښتو کښې ئې د« جامع فرایض» په نامه یو کتاب تألیف کړی دی .

---

(۱) پټه خزانه ص ۱۰۰ - ۱۰۱

(۲) که ئې څوك ویلو ته شوقمن وی دآریانا دمجلې په ۷ گڼه کښېنشر شوې ده .

۳:- محمد دداؤد هوتک‌زوی اود قادرخان لمسی دی ، چه په اصل د مرغې اونیکه ئې سیوری ته راغیء او بیا د قندهار د کو کران په کلی کښې ئې هستوګنه کوله. دا محمدهوتک دپټې‌خزانې لیکونکی دی ،څنګه چه دې ادیب دپښتو دپاره ښېځی لوی خدمت کړی دی ځکه‌نودی ترکمه‌ځایه چه‌راته معلوم وی پوره معرفی کوو . دی دخزانې په پای کښې‌خپل ځان داسی ښیی :-

«... اوس چه‌می لنډحال دپلار اونیکه وکښم ، نوخپل حال هم کاږم او دخزانې لیدونکی په‌خبرم : زماراتګ دې نابودی دنیاته یعنی تولد می واقع سوی‌و ، په ۱۳ د رجب المرجب سنه ۱۰۸٤ هجری په کوکران کی ، او سن ته دتمیز ور سېدم ، نومی پلار درس راته شروع کا ، او تراتلسمه کاله دعمرمی ولوستل احکام ددین اوفقه اواصول او تفسیر اودفصاحت علوم لکه قافیه اوعروض اوبیان اومعانی او نورچه‌زماپلارمرحوم و فات شو، اوزه په‌تقاضا دپادشاه ظل‌الله شاه‌حسین‌راغلم دقندهار ښارته تر اوسه په نظر کیمیا اثر دپادشاه اسلام ښادیم‌اوهر کله په‌احسان‌اومرحمت‌ددې خاندان عالیشان‌سر بلندیم . عمرمی‌تیرېږی په لوستلو او کښلو د کتابو ، له نعمتو دجهان بله بهره نلرم ، اوزړه می هم‌خوښی نکاپله‌دې اشغالو ، په‌بل څه . په‌دې او قاتو دعمر چه‌می تېر کړل، یو څو کتابونه می‌و کښل چه‌یواه‌دغو شخه‌دغه‌خزانه‌ده،اونوردادی:یو کتاب می کښلی‌دی‌په‌بیان‌دعلوم دفصاحت‌چه «خلاصة الفصاحت» باله شی ، اوپه‌دغه کتاب‌می‌تول‌علوم‌دفصاحت‌په‌پښتو د خپلو پښتنوطالبانودپاره خلاصه کړل، بل کتاب می کښلی دی په‌بیان دطبابت او علاج چه « خلاصة‌الطب » ئې نوم‌دی . په سنه ۱۱۳۹ هجری چه‌می‌دغه کتاب دپادشاه عالم پناه مد ظله مخ‌ته‌پیش کا ، سل طلاوی‌ئې‌ماته صله کا ، اوهر کله داسی مراحم دپادشاه ددې فقیر غریب په حق ډېر دی ......

ماله یودیوان داشعارو هم‌سته چه‌په‌دې وقت کی مردف او مدون سوی دی او غزلونه اوقصائد اورباعی‌لری ، کله چه‌طبع قاصر میل‌دشعر اووینا کا ، شعرونه کاږم اوموزونان دروزګار ئې خوښوی، ځکه چه‌دځان ستاینه ښه‌نده‌اوپوهان‌له‌دې کاره عار کا ، نوپه‌خزانه کی می خپل احوال وکښل چه‌ددې کتاب ویونکی ماته دعاوکا ،اوهر وقت می په دعا یادکا . خیله یوه غزل هم‌دلته دنمونې په‌طور کاږم ، چه‌پر صفحه دروزګار یادګاروی، نور اشعارمی په‌دیوان کی یو ځای‌دی شایقان دعلم اوشعر ئې له‌دیوانه لولی :

| | |
|---|---|
| ساقی‌پاڅه ، د سرو ملو ډک‌یو جام را | ستاله غمه نا آ را مه یم آرام را |
| بېله میو د بهار ننداره څه کړم ؟ | پسرلی سو د خوښی یوښه پیغام را |
| دنیا پاته ده ښا دی مو یو کړی ده | یوکړی‌می‌خوښ که،می‌کړی انعام را |
| دبیلتون په‌تاریکو کی می زړه شین سو | رڼا لمر د جام د میو په ظلام را |
| نا کا میو ددنیامی کام را تریخ کا | چه‌می‌خوږ کاکام، ترخه‌ومانا کام را |

نه نشاط سته، نه مستي سته، نه رندي سته    چه سم رندهغه او به على الد وام را
په او بو مي سوه زندگي، لنژخه راتود که
محمد ته دا ورد ك يو هسې جام را

٤:- بل ښه عالم او مرتجل شاعر ملا زغفران تره کي و، چه د پټې خزانې مؤلف دمدار المهام او صدر الا فاضل په نامه ياد کړى دى او وايي چه: «د پادشاه ظل الله کښې لاس دى». دا ملا زعفران د باچا دزوى «محمد» نامى استاد هم و، په حکمت رياضى او طب کښې ئې ښه لاس درلود، او يو کتاب «گلدستهٔ زعفرانى» ئې په حکمت او طب کښې ليکلى دى، دا کتاب د پټې خزانې مؤلف ليدلى او مطالعه کړى دى.

٥:- پښتون سالار بهادر خان، د شاه حسين په پاچهى کښې ډير مشهور سالار او زړه ور پښتون و، محمد هوتك وايي چه:- «د پاد شاه ظل بازو دى» شاه حسين په «ورور» خطاب ورته کاوه او عوامو «امير الامرا» باله. دا پښتون علاوه پر مړانه او سخاوت د ښه علم خاوند هم و، او ښه خوند ور شعر و نه ئې ويل، هر وخت چه به له جنگه فاتح راغىء نو علما او شاعران به ئې ميلمانه کول او ادبى مجلسو نه به ئې ورسره کړل(١) دده ديوې بدلې څو بنده دادى:

پيلتو ن دى زور دى ترليمو مى سهار نم څاڅى    لکه شبنم څاڅى
دا سره يا قوت مى به لمن کې ستا په غم څاڅى    په غم الم څاڅى
گو ره ليلى باران د اوښو ستا پر چم څاڅى    څنگه پرچم څاڅى

۞ ۞ ۞

راغله ليلى په شينکى خال نڅا په گلو کوى    په سرو منگلو کوى
سهار چه وزى سيل کا، زغ په بلبلو کوى    گل په اوربلو کوى
ملا لى ستر گى ئې کا ته په ور ژلو کوى    زيب په کجلو کوى
دژ وبل زړه و يني په هر گړى هر دم څاڅى    لکه شبنم څاڅى

۞ ۞ ۞

ښکلې نجلى! د باغ په لو رمه ځه نڅا مکوه    عاشق رسوا مکوه
وريت سوى زړه مى دى مين پورې خندا مکوه    را شه جفا مکوه
زه يم پتنگ ته يې د يوه ما جلبلا مکوه    نور ظلم بيا مکوه
يم ستا له عشقه ليو نى پرما، ما تم څاڅى    غم او الم څاڅى(٢)

٦:- فصيح دوران ريدى خان مهمند چه دغياث خان زوى او د مسعود خان لمسى و، او د قندهار د مهمندو کلى دده دنيکه په نامه يادېږى. ريدى خان په ١١٣٦ ﻫ اصفهان ته ولاړ او هلته لې دشاه محمود سره صحبتونه وکړه او بيا قندهار ته راغى، «محمود نامه» ئې وليکله چه شاه حسين زر طلاوى صله ور کړه.

---

(١)(٢) پټه خزانه ص ٦٣ - ٦٤

محمود نامه د پښتو ژبې یو غوره ادبي اثر ښکاري ، او محمد هوتك ئې په پټه خزانه کښې یو بابرا نقل کړی دی .

دا کتاب یو خوږ مثنوی دی ، چه د ریدی خان ادبي اقتدار ښه ځني معلومیږي .

۷ :- نصرالدین خان اندړ د محمد زمانخان زوی او ډیر زړور پښتون و ، چه په اصل دغزني او د شاه حسین په وخت کښې قندهار ته راغی او دخپلې مړانې په اثر د پاچا په حضور کښې د ډیر عزت خاوند شو . علاوه پر نورو ښیګنو د پښتو ښه شاعر هم و ، او « نصر » ئې تخلص کاوه ، د اشعارو ښه دیوان لری ، نمونه ئې په پټه خزانه کښې ذکر شوې ده .

## ۹ :- دا علیحضرت احمدشاه بابا پښتو پالنه (۱۱۶۱ ه)

د شاه حسین تر دربار وروسته دا علیحضرت احمدشاه بابا په دربار کښې هم پښتو ژبې لاره وموندله او د پښتون پاچا توجه ئې ځانته ورواړوله ، د احمدشاه بابا په دربار کښې د پښتو سره مینه خه ابتدائي مینه نه وه ، بلکه ددې پښتون بابا نیکه ګانو هم دخپلې ژبې سره د زړه مینه درلوده او پښتو ته ئې چو پرواهه ، مثلاً کامران خان چه د احمدشاه بابا د نیکه ګانو د سلسلې څخه دی او په (۱۰۳۸ ه) کښې ژوندی و ، د « کلید کامرانی » په نامه ئې په پښتو یو کتاب لیکلی چه د پښتو په تاریخ کښې مهم کتاب دی او د پټې خزانې مؤلف مونږ په خبروی .

پخپله پښتون بابا سره ددې چه د پښتنو د حکومت تأسیس او تشکیلاتو دده اکثره وخت نیوی ، بیاهم دده د پښتو مینې مجبور کاوه چه خپلې ژبې ته هم خدمت وکړي ، خو پخپله ژبه ئې خوږ دیوان ولیکی او دخپلې ژبې پیاوړی شاعر شو ، دده دیوان په (۱۳۱۹ ه) کال د پښتو ټولنې له خوا سره له یوې مفصلې مقدمې په ٤٠٤ مخو کښې طبع او خپور شوی دی ، ده به دېرې پر میدانو توری وهلې مګر دخپل وطن هسك غرونه ئې هم نه هېرول او په پښتو اشعارو کښې به ئې سلامونه ورته رالیږل ،

د ډهلی تخت هېرومه چه را یاد کړم

زما دښکلی پښتو نخوا د غرو سرونه

د پښتو ژبې په تاریخ کښې دا احمد شاه بابا دربار امری دربار دی چه د پښتو ژبې ګرامر او صرف ونحو پکښې لیکلې شوی او مثلې شوې ده . هو ، احمدشاه بابا خپل زامن هم د پښتنوالی په روح پالل ځکه ئې نو د پښتو خوږ ژبی شاعر پیرمحمد کاکړ دوی ته معلم مقرر کړی و ، او پیرمحمد کاکړ د شاه په امر د شهزاده سلیمان دپاره « معرفة الافغانی » د پښتو ګرامر ولیکه او دهغه له رویه به ئې درس ور کاوه ، نو دا کتاب په افغانستان کې د پښتو لمړی ګرامر دی چه تراوسه پوری زمونږ لاس ته راغلی دی او افتخار ئې همدې دربار ته راجع دی . دا څو جملې د « معرفة الافغانی » دی :

« په ښکار پسی عبث عمر ضایع کیږی - ښکار که وکړی باك نسته - ښکار مباح دی - ښکار ښه دی کله کله - غم به دی لیری کړی له دله - بازار لره ولاړ سه ، چه پیسه نه لری هغه دی نه ځی - کښت

خواری غواړی - د کښت اوس وخت نه دی - د کښت وخت لا پسې دی - کښت د برمه کوه وال به دی په ونه رسېږی، او به بهر وچی شی، حاصل به دی له لاسه ووزی. خواری به دی ابته شی سنز کال پر یوانی ده - کاختی دی رب نه راولی . . . . » (۱)

علاوه پر دې د احمدشاه بابا زوی اعلیحضرت تیمورشاه (۱۱۸٦ ه) چه تر ده وروسته پاچاشو دخپل پلار دشعر او ادب ترسیوری لاندی ئې پښتو شعرونه ویل، ځکه چه داحمدشاه بابا دیوان طبع شوی دی، نو دلته دده داشعارونمونه راوړل تکرار دی ، فقط داعلیحضرت تیمورشاه له دیوانه دهغه یوه پښتو بدله رانقل کېږی .

## داعلیحضرت تیمورشاه له قلمی دیوانه :

نن می بیا له توروستر گو سره جنگ دی پر لبانو ئې دزړه دو ینو رنگ دی
که پریې کړی سر پلاس ورلره راسم لا په دا ئې باورنسی زړه ئې سنگ دی
ستا د حسن لښکر راغی ځان ئې بایلو دعاشق دزړه میدان هر گوره تنگ دی
عشق دی مشك پټول نسی « تیمورشاهه »
چه پخپله ځان رسوا کا هغه رنگ دی (۲)

## داعلیحضرت شاه زمان پښتو پالنه

داحمد شاه بابا په کورنۍ کښې دغه ادبی پښتنی ذوق تر پایه موجودو ، اعلیحضرت شاه زمان هم خپلی ملی ژبې ته توجه درلوده ، او هر کله ئې روزله ، پخپله احمد شاه بابا او تیمور شاه خو په پښتو خوازه اشعارهم لری، مگر دشاه زمان اشعار ندی لیدل شوی .

خودده په عصر کښې هغه ادبی تحریك چه دمخه وژوندی پاته سو، او ډېر شاعران او ادباء موجود وه ، چه دد غه پښتو پالونکی پاچا په نامه ئې کتابونه په پښتو ولیکل ، مثلاً رحمت داوی چه د قندهار و ، په پښتوئې دلیلی اومجنون قصه نظم کړه ، او دا کتاب ئې په (۱۲۱۰ ه) تمام کړ ، د کتاب په مقدمه کښې دپښتانه نائب الحکومه سردار عبد الله خان چه په کشمیر کښې و، ستاینه کوی، او خپل پاچاهم داسی ستایی :

سلطنت د شاه زمان دی دی خاقان ابن الخاقان دی
پلار نیکه ئې پاد شاهان و دو یه تاج د هر افغان و
شکر شکر شاه زمان غنیمت دی دا زمان

بل شاعر چه دده معاصرو ، میانعیم متی زی دی، اوبل هم گل محمد ابدالی، چه د دوی له اشعار وڅخه ددغه عصر د پښتو ادبی حرکت ښه معلو مېږی، دتفصیل دپاره ئې پښتانه شعراء لمړی او دوهم جلد کتلای شی .

---

(۱) د کابل کالنی ۱۳۲۰ ه ۲۷٦ مخ (۲) پښتانه شعراء - لمړی ټوك ۳۳۹ مخ

## داحمدشاه بابا د پښتو پالنې اغیزه په هند کښې :

اعلیحضرت احمدشاه بابا په هند کښې یو رښتین ملګری و موند، چه دده سره ئې ښې ښې مرستې و کړې . دا ملګری حافظ رحمت خان و، چه هر کله به د احمد شاه بابا ملګری او ملاتړ و، د حافظ رحمت خان کورنې په هند کښې لا هره حیثه مشهوره کورنې وه، (ددې کورنې مفصل بحث په همدې کالنې کښې د ښاغلی حبیبی په مقاله کښې ولو لئ) حافظ رحمت خان لکه په نورو کار و کې چه ئې د احمدشاه بابا ملګری کوله د ژبې په خدمت کښې هم دده پیرو و، او په پښتو ئې خوازه خوازه اشعار ویل، دوکتور اسپرینګر مشهور مستشرق چه دده د کتابخانې فهرست په (۱۸۵٤ع ) کښې نشر کړی دی وایی چه دا کتابونه تر ځلو پښت صند وقه ډېر او اکثره پښتو وه دار مستتر لیکی چه ماته په رامپور کښې یوه پښتانه د پښتو د اشعار و یوه مجموعه را کړه چه د حافظ رحمت خان او نورو پښتنو سردارانو اشعار پکښې وه ، او دغه مجموعه اوس د بر تش موز یم په شرقی آثارو کښې ساتلې ده، یود حافظ رحمت خان شعر په دغه مجموعه کښې د منځوا غند نه وه . نو حافظ رحمت خان زمونږ د ژبې ښه شاعر او لیکونکی و، علاوه پر حافظ رحمت خان دده ټولې کورنې د پښتو ژبې سره علاقه درلوده مثلاً نواب «مستجاب خان» د حافظ رحمت خان زوی چه «ګلستان رحمت» ئې لیکلی دی د پښتو ژبې ښه لیکوال و، په عربی او پارسو کښې ئې هم ښه قلم درلود همدارنګه نواب «محبت خان» د حافظ رحمت خان بل زوی چه «ریاض المحبة» ئې پخپله خوږه ژبه پښتو لیکلی دی اودا کتاب راورټی لیدلی دی او داسې ئې معرفی کوی چه :- د «سرجارج بارلو» په خواهښت په (۱۸۰۵-٦ع = ۱۲۲۰ه) کښلې شوی او (۷۰۰) پاڼې دی چه کوچنې صفحې لرې د پښتو مهم لغت دی اودا فعالو ګردانونه لرې معلومیږې چه دا کتاب د پښتو لغوی او ګرامری کتاب دی نواب محبت خان د پښتو ژبې خوږ شاعر هم و، چه له بده مرغه دده اشعار (۱۸۵۷ه) په ادودوډ کښې تلف شوی دی . (۱)

## ۱۰ :- دامیر دوست محمدخان په وخت کښې (۱۲۵٤ه)

داعلیحضرت امیر دوست محمدخان په وخت کښې پښتو ژبې د شاهی کورنۍ په زړه کښې ځای نیولی و ، او د همدې مینې په اثر دامیر دوست محمدخان دوه ورونه سردار مهر دل خان «مشرقی» او سردار پردل خان د پښتو ښه شاعران وه ، او پښتو ته ئې په خورا درنه سترګه کتل، بلکه سردار مهر دل خان علاوه پر شاعرۍ کم وخت چه په قندهار کښې اوسېدې دده ځای د ښو ښو فضلاو او ادباو د روزنې او پالنې ځای و ، او هر لرمل (مازیګر) به د قندهار نامتو ادبا لکه میرزا حنان حاجی عبدالله، صدیق اخندزاده او نور شاعران دده په ځای کښې سره راغونډېدل او هلته به ئې د پښتو

(۱) د حبیبی له مقالې څخه چه په دغه کالنی کښې نشر شوې ده .

ژبې علمي او ادبي بحثونه اوخبرې نې کولې، چه دهمدې صحبت په اغېزه دده ترمرګ وروسته میرزا حنان یوه مرثیه دده په یاد وویله چه څو بیتونه ئې دادي: (۱)

وجوارته دمولا سردار قرین ولاړ — چه مرغوب د کل عالمو، په تحسین ولاړ
د هنر او علم کان د حیا بحر — په خلعت د نیکنامې، خه ښه رنګین ولاړ
په جیفه ئې ددنیا ځان ککړ نکړ — دعمل په صابون پاکه جامه سپین ولاړ
وسخا ته ئې حیران حاتم طی و، — تکیه ګاه د هرفقیر او دمسکین ولاړ
فیض رسانه لکه لمرو کل جهان ته — مستقیم پرشریعت حامی ددین ولاړ

اعتماد باندې د کړو نه دی «حنانه»!
چه «سردار مهردل» له دې دنیا یقین ولاړ

همدارنګه ئې بل ورور سردار پردل خان دخپلې ژبې پښتو ښه شاعرو، او اشعار ئې پرملي وزن ویل. نوله دې کبله مونږ ویلای شو چه تولی شاهي کورنی له پښتو سره دزړه مینه درلوده او داژ به ئې روزله.

اوس به ددې دواړو سردارانو دشعردوې لنډی لنډی نمونې راوړو:

## دسردار مهردل خان شعر:

پلو واخله له سپو زمې مخه مهرمنې! — ستا بې مخه راته شپې دی ورځې سپینی (۲)
ستا له وره څخه تللای نسم هوری دوری — درته ناست یم په دربار پرې مې دی سپینی
درست بدن مې دپښتون په اور کې وریت شو — په کوکل کې مې ویلې ی توری سپینی
راته وګوره رقیب سپک په څه شان کړم — خدای دی سپک کړی ستا په مخ ودی وزی سپینی
زه پښتون یم نه وېرېږم له رقیبه! — ورته و به کړمه بیا ښې سپینی سپینی

«مشرقي» دی په تیاره دپښتون ژاړی
ورته لمر دمخ ښکاره کړه، په مخ سپینی (۳)

## دسردار پردل خان شعر:

پرملی وزن

وې ګورې د ګل په شان مې ژړ رخسار دیاردی — عالم ئې تمه دار دی

❀ ❀ ❀ ❀

یو دې بوی د ګلاب راغی — زړه مې په تاب راغی
پروت په بېغمۍ وم یو بشرمې په خواب راغی — پر مخ مې سیلاب راغی

(۱) پښتانه شعراء – دوهم توک ٤٤٦ مخ (۲) په دې غزل کښې دتجنیس تام صنعت په ښه توګه ځای شوی دی. د «سپینی» لغت په هر بیت کښې جلاجلا معنی لری. (۳) پښتانه شعرا – دوهم توک – ٤٤٧ مخ

وینئ کړم لهخو بهبیاپېری که انسان راغیء — او پر مخ-مخمی باران راغیء
پرې خو بهئې نېږدمچه پهمینه کی می یار دی — عالم ئې تمه دار دی

۞ ۞ ۞ ۞

ښه صفت دی رنګا رنګ کوم — هوا دی د پلنګ کوم
ستا پرتورو زلفو درقیبه سره جنګ کوم — منګولی به په رنګ کوم
اودامی پېغور نهدی کهشړی-درپسی لنګ کمه — اوترشا-ترشا بهنام وننګ کمه
نې لرم پروا «پردل» دعشق پهتهمت باردی — عالم ئې تمه دار دی (۱)

## ۱۱ :-داعلیحضرت امیرشیرعلی خان پښتو پالنه ۱۲۸۵-۱۲۹۶ ه ، ق

دهوتکو ددورې راودې خواته دپښتودپاره مهم خدمتونه مرحوم اعلیحضرت امیر شیر علیخان کړی دی اوده چهدخپلی پاچهی پهدوره کښې هرخومره مهم کارونه اووظایف د خپل پښتانه قوم اودې وطن دپاره کړی دی دتولو پهسر کښې دملی ژبی خدمت دی. دې پښتون امیر خپلی ملی ژبی ته مخصوصه توجهو کړه ، تول عسکری القاب اوعناوین ئې پهپښتو کړه ، تولی عسکری قوماندې اوبولی ئې پهپښتو تبدیل اورواج کړې چهتر اوسههم هغهعناوین اوالقاب اوداقوماندې اوبولی دافغانستان دعسکر وپهمنځ کښې ویل کېږی (۲) چهلهسپهسالار څخهنیولې ترحوالهداره پوری تول القاب اوعناوین پهپښتو تبدیل شوه .

دلته ئې دنمونی پهتوګهځو القاب راوړو (۳):

| رتبه : | پښتو لقب: |
|---|---|
| سپهسالار | تول مشر |
| نایب سالار | سرغټ مشر |
| جرنیل | غټ مشر |
| برګډ | پنځرمشر (پنځه زرمشر) |
| کرنیل | زرمشر |
| کمیدان | ناب |
| کپطان | سل مشر |
| صوبهدار | بولك مشر |
| حوالهدار | لس مشر |

(۱) پښتانهشعراء ، دوهم ټوك ٤٤٤-٤٤٥مخ (۲) البته څهتغیر به ئې موندلی اویابه نور هم پسی ترشوی وی مګر اساس ئې پههغه وخت کښې ایښوول شوی دی .

(۳) دآریانا دمجلی یوولسمه شماره، دښاغلی حافظنور محمدخان مقاله .

داسې د پر القاب هغه وخت په پښتو شوی وه، علاوه پردې د کابینې تر پوره او صحیح تشکیل وروسته د کابینې داعضاو لقبونه هم په پښتو الیش او رسمي شوه په دې ډول (۱):

| | | |
|---|---|---|
| صدر اعظم | = | لوی مختار |
| مستوفی | = | لوی ملك |
| خارجه وزیر | = | لوی مېن د باندی |
| حشمت الملك یا داخله وزیر | = | لوی مېن دغرو |
| دبیر الملك | = | لوی کښل |
| سپه سالار | = | ټول مشر |

دالقبونه دشمس النهار په یوه شماره کښې داسې نظم شوی دی:

صدر اعظم که بزرگان جهانش خوانند — «ټول مختار» فلك قدر فلاطون تدبیر
بعد مستوفی نام آور عالی همت — که بتائید قلم کرده ممالك تسخیر
نام نامیش حبیب الله و محبوب قلوب — «لوی ملکش» لقب از پادشه عالم گیر
پس وزیر دول خارجه کز مصلحتش — کار دولت شده بیچون وچرا نظم پذیر
«لوی مېن د باند» پسندیده شدار سله خان — کز هر اقلیم بود جانب او روی سفیر
حشمت الملك که «لوی مېن غرو» آمد لقبش — وانکه در مملکت از حسن خرد گشته مشیر
اختر پنجم از آن هفت سپه سالا راست — کز نهیبش ببدن آب شود زهرهٔ شیر
«ټولمشر» آنکه بود نام گرامیش حسین — وانکه در نام خوشش هست بغایت تاثیر

همدارنگه ئې عسکری بولی په پښتو کړی چه تراوسه هم «تیارسی»، ولاړسی»، درېنږ، خپور پروت» اونوری قوماندی دپښتنو عسکرو منځ کښې سته چه مثال راوړ لوته ضرورت نلری تردې اقداماتو وروسته ئې دنا ئب الحکومه گانو او مستوفیانو القاب او عناوین هم په پښتو کړه (۲) او پښتو ژبې ته ئې هم عسکری هم ملکی اوړ مو قعیت ورکړ اوددې پښتو روزونکی باچا په وخت کښې ځینې کتابونه هم ترجمه او ولیکل شو مثلا دوست محمدخټك چه دحاجی محمد اکرم خان لمسی او دمحمد زمانخان کړوسی او دملی شاعر خوشحال خان له کورنۍ څخه و، یو کتاب د «بحر العلوم» پنامه دده په وخت کښې نظم کړ او په (۱۲۹۰) هجری کال ئې له نظمه فارغ شو، دا کتاب ۱۱۵٤ مخه او تقریباً شل زره اوتیا بیتونه دی (۳) او کتاب ئې هم دده پنامه داسې ختم کړی دی چه وایی:

دامیر دشاهی زور دی — عالم ده وته نسکور دی
په کابل کی جانشین دی — حکمرانه ئې نگین دی

(۱) د آریانا د مجلې لسمه شماره، دښاغلی حافظ نور محمدخان مقاله
(۲) د آریانا مجله لسمه شماره - ۲۸ مخ دښاغلی حافظ نور محمد خان مقاله وگوری.
(۳) پښتانه شعراء - دوهم ټوك ٤۹۳ مخ

| | |
|---|---|
| قندهار او هرات دینه | چه دده حکمونه وړ ینه |
| پسې بلخ دی برا دره ! | تر خیبره بهره ور ه |
| له امیر دوست محمد خانه | دی خلف دی قدر دانه |
| ور پسې د پلار دعاده | ځکه توري په هرچاده (۱) |

همدا شان ئې په ۱۲۹۲ ه کال «اخلاق احمدی» د عربی «طریقهٔ محمدیه» په پښتو په یوولس زره بیتو کښې ترجمه کړ او یا نور داسې آثار ....

علاوه پردې امیر شیرعلیخان د پښتو له ادبه سره هم دزړه مینه درلوده او هر کله به ئې اشعار اوستل، بلکه پخپله ئې هم کله کله په پښتو اشعار پرملی وزن ویل چه مونږ ته ئې دالاندې څولنډۍ په لاس راغلی دی اودا لنډۍ ئې هغه وخت ویلی دی چه له کابله مزار ته تی او د بدبختیو ورته مخ و. په دې لنډیو کښې خطاب وطن ته دی :

ماویل په تابه زندګی بنا کړم — اوس له تاوړم دارمانجن زندګی داغونه

❀ ❀ ❀ ❀

د غم لښکری را پسې دی — دپاچهی تاج مې پر سر له ملکه ځمه

❀ ❀ ❀ ❀

نه له تا ځم نه مې هېر پېږې — یا به زه مرم یا به دې و ساتم وطنه !

❀ ❀ ❀ ❀

دیاری لاس مې تا ته درکړ — پر تا بایلمه سرو مال هم اولادونه (۲)

❀ ❀ ❀ ❀

دده د پښتو پالنې تاثیر داعلیحضرت امیر عبدالرحمن خان ترعصره پورې هم و ؛ او ځینې نور کتابونه لکه «نصیحت نامه» وغیره په پښتو کښې ولیکل شوه .

## ۱۲ : - دشهیدامیر حبیب الله خان پښتو پالنه تر (۱۳۲۳ ه ق) وروسته

داعلیحضرت امیر حبیب الله خان په عصر کښې پښتو یو بل غټ گام واخیست، چه خوراد ستاېلو وړدی ، او هغه دا و، چه پښتو په مکتب کښې پرېښودله شوه او دمعارف په نصاب تعلیم کښې ئې ځای ونیو. چه په وروسته عصر کښې هم دارو یه پسې ښه تعقیب شوه او د امیرشهید تر مرگ وروسته بیا یو مجلس د «پښتو مرکه» په نامه چه دوطن دوړو پښتنو ادباو فضلاو څخه مرکب و، او د پښتنو دهرې قبیلې یو یو نماینده په کښې و، د کابل په مرکز کښې تشکیل شو ، دې مرکې د پښتو قواعد ولیکل، لغات او اصطلاحات ئې راغونډ کړل ، نوی نوی مونه او اصطلاحات ئې جوړ کړل، ځینې ابتدائې

(۱) پښتانه شعرا - دوهم توک ۴۹۵ مخ (۲) د ښاغلی «حبیبی» له یادداښتو څخه

کتابو نه ئې دمکتبو دپاره ترتیب کړه، یو کتاب د(دیوازینی پښتو) پنامه او بل د « پښتو پښتو یه » پنامه طبع اوخپاره شول، په(۱۳۰۱ ه) کال چه دطلوع افغان جریده تأسیس شوه او په پارسی ژبه خبر بدله دپښتو په مضامینو ئې هم پیل وکړ چه ورو تو له پښتو شوه دپښتو مرکې دپښتو ژبی یو جامع قاموس هم ولیکه، مګر متأسفانه چه طبع اونشر نه شو بلکه اوس ئې درک لا هم ورک دی دامیر شهید د عصر سراج الاخبار په جریده کښې هم پښتو جاری شوه او دپښتو په شاو خوا کښې به خبرې نی اومبا حثې کېدلې ، اوډېرو شاعرانو په پښتو اشعار وویل. دښاغلی مولوی صالح محمد خان پښتو درسی کتب طبع شو ل .

په دې عصر کښې دمرحوم مستغنی او سردار عبدالرسول خان اومرحوم غلام محی الدینخان اونورو شاعرانو ادبې خدمات دیادولو وړ دی .

## اوسنی عصر

دپښتون اعلیحضرت شهید (رح) پښتو پالنه اودده په توجه دپښتو ژبی حقیقی ژوند اوبیا دزلمی تولواك تېنګ اولوړ عزم چه دپښتو ژبی دلوړوالی دپاره ئې کړی او هغه ملی خدمتو نه چه خصوصاً دپښتو درسمی کېدلو اودد نیا دژوندیو لوړو ژبو په ډله کښې در ډلو دپاره دده په امر شوی دی، هرچاته ښر ګند اود کالنی ښاغلی ویونکی ئې اوس پخپلو سترګو وینی سر ډېره پردې دهواد په ټولو جرایدو اومجلو اواخبارو اوپه تېرو کالنیو کښې د پښتو دلوړتابه او پرمخ تګ خبری نشر شوی دی او اوس هم ورځ په ورځ نشر ېږی نو که څوك دپښتو ارتقا په دې عصر کښې لیکی البته په یو دوو مقالو کښې نه ځائېږی ، بلکه یو بشپړ کتاب ځنی جوړېږی ، ځکه نوزه خپله مقاله پردې ځای ختموم او دزلمی تولواك دپښتو پالنی خبری هغه وخت ته پرېږدم چه فرصت لاس ته راکړی او دخدای په مرسته لکه چه ښائی دپښتو داژوندی دوره په کامل صورت و لیکم ، اوبل داچه پښتو لا تر اوسه پرمخ روانه ده اودټول پښتون ملت دامید سترګی دی چه پښتو ژبه به ددې زلمی تولواك په توجه د ژوند لوړو مانیوته وخیژی، ځکه نو نه غواړم چه ددې شاهی کورنی داملی خدمت په پرخو پانو یا یوه مقاله کښې ولیکل شی، بلکه باید دپښتو داحیاء په تاریخ اودوطن د سعادت اولوړتیا په تذکار کښې یوغټه کتاب پرولیکل شی .

دغه دې چه زه اوس په دغه لنډه یادونه خپل مضمون پای ته رسوم ، او له خدایه غواړم ، چه هرکله دپښتو ملی ژبی مخ پرلوړتیا اوخپور تیا وی .

یادونه : په دې مقاله کښې ځینې مطالب دپټې خزانې له قلمی نسخې اوقلمی تعلیقاتو څخه را اخیستل شوی دی ، چه ښاغلی حبیبی ماته داستفادې لپاره را کړی وه ، ځکه چه هغه کتاب تر اوسه ندی نشر شوی، نو ما دغه یادونه لازمه وګڼله . ( بینوا )

# زموږ ادبي نهضت

یـــا

## اوسني ادب

گل پاچا «الفت»

کله چه د آسمان په لمن کښې د سعادت او نیکمرغۍ ستوری زموږ په فال را وخوت، او دا زړه ځرخه د پښتون په مصلحت او مرام و گرځیده، کله چه دلمر اوسپوږمۍ په دور انکښې دد ې هواد بختوری ورځې راغلې اود زماني په طبیعت کښې بدلون و لیدل شو، کله چه دلحان پیژند لو ډیوه زموږ په وطن کښې بله شوه او ملي شعور سترگې وغړولې، کله چه د احساس او تمیز غوږ ونه خلاص شوه اوله هر لوری زموږ د خپلو ښیېلیو خوازه اوازونه را غله او نوی سندری شروع شوې، کله چه زموږ د ښاغلو نیکو نوار وا گانو په خوب کښې موږ ته خه وویل او راویښ ئې کړو د وطن د غرو په څو کو یوه رڼا و ځلیده چه د پښتو او پښتو نولۍ ښکلی څیره پکښې ښکاره شوه او زموږ د زاړه مجد او عظمت تصویر ئې هم په ځنگ کښې نیو لی و.



ښاغلی گل پاچا خان «الفت»

زموږ د ادبي نهضت دغه رڼا چه د پښتو دغه فاني ژوند اساس یا آغاز ورته ویلی شو ځوک چه ورته په اجتماعي نظر گوري را زرا زملي او اجتماعي ښېگڼې پکښې ویني او یقین کوي چه دا نهضت او حرکت ډېر عام منافع او عمومي فوائد لري.

له کوم وخته چه موږ د دغه روستي نهضت په دوره کښې خپل اصلي او اساسي ادب ته

مخه کړ یده اوله مستعار ادب څخه را گر زېدلی یو که څه هم ډېرلنږ وخت تېرشو یدی اوله اته نهو کـا لو څخه تجا وزنه کوی مگرزمونږ پښتنی ادب د کم و کیف په لحاظ ښکـا ر ه پیشرفت او زیات پر مخ تـگ کړیدی ، په همدغه لنږوخت کښې چه ددنیا جگړو زمونږ مطبوعاتی فعا لیت ته هر گو ر ه صدمه ر سو لې ده ، بیا هم ز مو نږ د ا د بی نهضت مظا هر مو نږ خو شحا لوی اوز مو نږ دافتخار وړ کېدلی شی .

دپښتو کوم لیـکو نکی او شاعران چه مونږ په همدغه لنږه زمانه کښې پیدا کړی هغه مو نږ ته یقین را کوی چه ډېرژر به ډېرپیا وړی لیکوال پیدا کړو اوزمونږ شعرو ادب به هر گوره یوه لوړ اوعالی معیار ته ورسیږی ، کوم مطبوع اوغیرمطبوع اثاراوتا لیفات چه مونږ په دغه محدو ده زمانه کښې پخپله ژبه کښې پیدا کړیدی هغه شهادت ور کوی چه مو نږ به ډېر ښه ښه مؤ لفین او مصنفین پیدا کړې شواوزمو نږ مطبو عات به د یوه ښه علمی او ادبی وقارما لك شی .

دانوی ادبی نهضت چه په پښتو او پښتنو کښې شروع شویدی مو نږ ته لکه یو رشتین استازی دیوه عر فا نی مستقبل مو ثو ق زیر ی را کو ی او دا خبره ثا بتوی چه دپښتنو ادبی استعد ادیو اوی ظرفیت لری چه هرراز هیله او توقع ورځنی کیږی .

که مو نږ ددغه نهضت له شروع څخه هغه خوااودا خوا وختونه د مقایسې په تو گه و گورواو خپل علمی سیر په دغو دواړو دورو کښې له نظر لاندی ونیسود او ړځی او هغه ورځی په هیڅ تله نه برابرېږی اولکه چه دهقانان والی په نهو میاشتو کښې نه رسیږی او په نهو ورځو کښې پخیږی دانه لس کاله له هماغسی ور ځو څخه دی چه یوه ورځ ئی له میا شتی سره برا بره ده

له دغه نهضت څخه وړاندې زمونږ دلیك او تحریر ژبه یوه داسی ژبه وه چه نه ئی مو نږ گرامری اصول تا کلی و ، نه موور ته دلغاتو کوم قاموس جوړ کړی و ، نه مود کوم لوړ او عالی ادب څه کتابونه اورسایل لیکلی و چه یوه لیکو نکی ورته داستفادی په وخت کښې رجوع کړی وای ، نه دا ژبه زمونږ هغه رازمورنی ژبه وه چه په صحت کښې یې چا ته یا څه شی ته محتاج نه وای ، نو ځکه مو په شعرو ادب کښې یوه سمه او صحیح لاره نه مونده چه یوه ځای ته رسیدلی وای او شعرو ادب عمومیت پیدا کړی وای .

له کوم و خته چه د دی نوی نهضت بها ر شر وع شو او شعرو اد ب ته تو جه و شوه په همدغو لنږو ورځو کښې ډېر لیکو نکی او شا عران بلکه مؤلفین اومصنفین پیدا شوه چه په دغو مره وخت اودغسی حالت کښې ئې ډېر علمی اوعرفانی خدمتونه و کړه

په همدغه لنږه مده کښې مو نږ موفق شوو چه په پښتو کښې دشاعرانو تذکرې ، دلغاتو قاموسونه دژبې گرامرونه ، کـلی گانې ، قرائتی او ادبی کتابونه دپښتو اصطلاحات اومحاورات دپښتو متلونه ، لغوی څېړنې یا ځنی شعری رسایل ولیکو اوخپل تاریخی مشران او مشاهیر لکه لوی احمدشاه بابا ددغه ادبی نهضت په روښانه هنداره کښې هرچاته وښیو ، که چېری دمطبوعاتی

و سایلو قلت مانع نه وای ښائی چه زمونږ نورو هغو آثارو چه تر اوسه لا نه دی طبع شوی او په الماریو کښې دی زمونږ دادبی نهضت دسریع پیشرفت ښه نمایندگی کړی وای او زمونږ موفقیت او بریالیتوب ئې ښه ښودلی وای .

که مونږ دخپل دغه نهضت معنوی ښیگڼی او تاثیرات په نظر کښې ونیسو ، پدی خوا کښې هم مونږ ډېری مهمې گټې کړیدی چه زمونږ په اجتماعی حیات اوژوندون کښې زښت ډېر قیمت لری همدغه نهضت زمونږ په هرفرد کښې دملیت احساسات اودوطنیت اوپښتونولی جذبات ډېر قوی کړه اودخان پېژندلو او اتکاء نفس غریزه ئې هم ښه ټینگه کړه - زمونږ په دغه اوسنی ادب کښې شاعرانه خیالات له اجتماعی احساساتو اوملی عشق سره داسی گډ او مزوج دی چه دیو مفید معجون مثال لری اودهر ستر گور په نظر کښې دراز رازمادی اومعنوی ترقیاتو تمهید او مقدمه معلومېږی همدغه ادب دی چه دپښتنو ذوقی شعور ورځ په ورځ روزی اوویښوی ئې ، او دعلم وعرفان په خپرولو کښې ډېر خدمت کوی .

هو ! ! دهرملت خپل اصلی اوملی ادب دی چه دهغه ملت دزړه کړکۍ دعلم وعرفان لورته پرانیزی اودیوه معنوی اوذوقی بهار لهوږمو سره ئې اشنا کوی ، نودیوه ملت خپله ملی ژبه دهرراز مفیدو تعلیماتو اوافهام وتفهیم صحیح او اصلی آله ده چه په حقیقت کښې ئې یو فصیح او بلیغ مبلغ بللی شو ، دهمدی لامله هرقوم ته ددوی پخپله ژبه خدائی تبلیغونه شوی اواسمانی معلمین هم ددوی په ژبه استول شویدی .

دایوه منلی شوی اوربښتیانی خبره ده چه په یوه پردۍ ژبه کښې ادیب کېدل دومره گران کاردی چه نږدی نږدی له غیرممکن سره ادخ لگوی اوډېر کم پېښېږی چه سړی په بله ژبه کښې داسی شاعر یا ادیب شی چه دهغی ژبی اصلی خاوندان پری کوم ادبی اعتراض ونکړی شی ،

که فرضاً کوم سړی دخپل ادبی استعداد او شاعرانه قریحی په زور په بله ژبه کښې شاعر یا ادیب هم شی نو معلومه خبره ده چه په هغه ژبه کښې خودخپل کام اوملت ادبی ذوق ته څه مهم خدمت نشی کولی ځکه چه یو کام دبل کام په ژبه داسی نشی پوهیدلی چه په ادبی لطایفو اودقیقو تعبیراتو باندې ئې له زړه وپوهېږی اوهغه راز استفاده ورځنی وکړی لکه چه له خپلی ژبی څخه ئې کوی نوچه دغه تولی غتې اوډېرې خبری سړی په نظر کښې ونیسی ویلی شی چه دیوه ملت هغه ادبی نهضت چه ددوی پخپله ژبه کښې وی دهر رازذهنی اوفکری ارتقا اساس کېدی شی اودیوه ښه رونبانه سبا مطلع یا لکه دسهار ستوری درنیاور ځی پیغام بلل کېږی .

که مونږ دغه نهضت ته هرڅو مره خوشحالتیا وکړو اود هرڅو مره امیدوار اوسو وقبله ئې وبولو ورسره ښائی دهمدې لامله مونږ په ډېره اعتنا دخپل ادبی بهار استقبال کوو او په غور ولوستر گو خپل ادبی پیشرفت ته گورو چه له پخوا وختو څخه ئې څه تغیر اوڅه تحول کړیدی ؟ یعنی دپښتو

اوسنی ادب څنګه دی اوپخوانی ئې څنګه و ؟ څه ښېګڼې پکښې زیاتې شویدی اوڅه صفات ئې بایللی دی ؟

زمونږ د شعر وادب تاریخ که څه هم د ځینی تاریخی اسنا دو په شهادت چه په پټه خزانه کښې ئې مو موله زرو کالو څخه اوږدی اود بعضې صحیح قیاساتو په استناد ثابتېږی چه پښتنی ادب له زرو کالو څخه هغه خوا هم دېری دورې لیدلی دی اوډېر عمرلری مګر دغه روستی نهضت هم یوه نوې دوره حسابېږی اونوی رنګ لری چه دلته وربا ندی څه نه څه بحث کیږی .

زمونږ په اوسنی ادب کښې شعر اوشاعری لږ څه خپله مجرا بدله کړېده اوهر راز مضامین دشعر په قالب کښې راوړل کیږی ، یعنې او سنی شعر یوازی ذوقی اواحساسی شی نه دی بلکه تعلیمی اوتبلیغی حیث هم پکښې زیات ښکاری اوله پخوانه پکښې داجنبه زیاته شوېده ځکه چه ددی عصر تقاضا هم دا ایجاب کوی چه شعر باید یوازی جمال سندرې ونه وائې بلکه دفن او کمال منا دی هم شی دهمدی لامله دپخو اوخت اشعارو غزلی آغازوانجام درلود اودمضمون دتسلسل مراعات به چانه کاوه ، هر بیت به ځانته مضمون و، چه له بل بیت سره به ئې څه قریب ارتباط نه درلود یعنی په یوه غزل کښې به یوه بیت عشقی کیف درلوداوپه بل بیت کښې به اخلاقی یاعرفانی تعلیم و مګر په عمومی ډول به د غزل رجع دجمال ستاینې اودمینې کیف ته معلو میده اویوه نیم اجتماعی یا تعلیمی او انتباهی بیت به پکښې ضمنې حیث درلود مګر اوس دا کثرو اشعارود پاره دموضوع او مضمون په لحاظ یو عنوان ټاکل کیږی چه شاعر تر آخره پوری دهماغه مضمون مراعات کوی اومضمو نی حیثیت پکښې ساتی نوکه له دا سی هم وشی چه دغه راز اشعارڅه شعر ی قیمت ونلری او تش نظم ورته و یل کیږ ی یعنی د یو ی منظو می مقا لی په جم کښې تیر یږ ی چه با ید خطبه یاموعظه ور ته وو ایو مګر پاخه او مقتدر شا عران که څه هم پخپل شعر کښې دیوه مضمون تسلسل او ار تبا ط نه پرېږ دی اوهمدغه هدف لری چه خپل مقصد اومطلب لکه یوتر لیکو نکی په ښه شان افاده کړی خو شعری ناموس هم ساتی اوشعریت په مضمون باندی نه قربانوی لکه زمونږ یو پخوانی پیاوړی شاعر کاظم خان شیدا چه یو ځای له خپل اسارت څخه شکایت کوی او دا اجتماعی مضمون په یوه داسی ادبی پیرایه کښې ادا کوی چه هېڅوك ئې له شعریت څخه انکار نشی کولی؛

هېڅ خبر په سلیقه د پر وا ز نشو م          لکه ګل په اشیانه کښې ریخته پر یم

وګوریء ! پدی بیت کښې څومره رنګینی او شعریت لیدل کېږی ، یو رښتیانی شاعر که دغه راز مضمون ادا کوی نودغسی پیرایه هم ورته لټوی- په بل ځای کښې همدغه نوموړی اومقتدر شاعر ددنیا له ملوثاتو اوناپا کیو څخه پدې ډول شکایت کوی :

طهارت به په کوم آ ب شیدار واشی          دافتاب چشمه روز ګار کړه مستعمله

زما په گمان چه دغه مضمون که په همدغسې شعری پیرایه کښې ونه ویل شی دومره بېخونده به وی چه څوك به ورته هیڅ اعتنا ونکړی مگر دلته چه شعر ورځنی جوړ شویدی نو څوك چه د دنیا په پلیتیو شپه او ورځ لکه مچ بنبنږی هغه به هم ددې بیت په اوریدلو متحسس شی او ځان به و ځندی نو دغه راز اشعار چه د مضمون او موضوع په لحاظ پکښې یو مهم مطلب ، ځای شوی وی او د پیرایی په لحاظ شعری سحر او اثر لری هغه داسې شعروی چه یو خطیب ئی په منبر او یو سازنده ئی د بزم په مجلس کښې ، یو نطاق ئی په کنفې انسو نو کښې او یو زاهد ئی په خلوت کښې له ځانه سره وائی زمونږ ددې نوی نهضت د پښتو شاعرانو ځینی اشعار هم همدغسې اشعار دی چه په غزلی آهنگ کښې لوړلوړ اجتماعی مطالب اداکوی او د بلبلو په نغمه کښې ښه ښه تعلیمونه او تلقینونه ځایوی د مثال په ډول دالاندینی شعرونه وگوریء !

## زه

## (۱)

په مذهب نه د بلبل نه د پتنگ یم — نه غوټۍ په شان دزړه په پښور نگ یم
نه اغزی یم چه انگړ شمه د گلو — نه دچاد ږدی لاندی پوست پالنگ یم
نه آئینه یم چه منظور شمه د ښکلو — چه می کېږدی په منگلو نه اتر نگ یم
غوټی نه یم چه می جونی سر کښې کېږدی — چه خوبان می کړی ږرغاړه نه لونگ یم
نه ژړ ایم نه خندا نه زیر و بم یم — نه یو هېنزم چه زه څه اوڅه آهنگ یم
چه قلنگ را باندې نه وی ملنگ نه یم — نه صاحب د باج خراج اوداور نگ یم
نه د کونه ور نه ومر ستهرانه کېږی — نه دچا په شان د بل په ځان پلنگ یم
نه اوزگار یم نه می کار لکه ماشوم شته — یو ساعت خفه خوشحاله په بل در نگ یم
نه می روح دشرقیت ډېره ژوندۍ ده — نه د نیا ځنی خبر لکه فر نگ یم
د دې هسی بېمعنی ژوند و ن د پاره — دا ضدادو سره همیش ولی په جنگ یم
چه نه در د لرم نه در د لره دوا یم — زه له دی بی سوز وسازه ژونده تنگ یم
خدایږودی ژوندون نور ستړی کړم ستومانه — چه دژوندا ود ژوند و دپاره ننگ یم
خاوری یمه خود با ده سره مل یم — د هر کس او دنا کس د پښو نه څنگ یم

تیټ مې مه بوله غور ځنگ را باندی مکړه
زه پدې افتا دگی کښې لوی گړ نگ یم (مجروح)

## غزل

## ( ۲ )

نه زړه به دمین شی په وصال داشنا ښاد — نه ډکه به تر خولې شی پیما نه دچا په یاد
رسېږی دازل کړه په قسمت نه په خواری — شیرینه دخسروشوه غرونه و کیندل فرهاد

یو ازی ژوندخوښ کړیدی هرچا په زمانه — که یودخواری مرشی بل اڼي نه رسی په داد
کـلو نه عمر تېر شولا می وانخیست عبرت — هېر جن یم چه خوب وویننم بیانه راځی په یاد

په بنه چه سره ور نشو مخلص خوښ یم په دا
چه وخېژی له بېخه ددې هسی ژوند بنیاد

(مرحوم مخلص)

ژړه پانه

(۳)

چه دمنی سیلی راغله — تګ مې شو په سیل باغله — د خندو نی ګل سراغ له
نه شین باغ نه ښکلی بڼ و — نه د ګل پکښې مسکن و

بڼ و ژړ بڼه الوتې — نه غاټو ل ونه پیر وتې — نه بلبلی پر جار وتې
ګل و مړ سړه سناوه — غوټی پېغله نیمه خواوه

ابشار هم ویلی ساندې — د بلبل دز ړګی مراندې — وی شلیدلی لاندی باندې
نی خوښی نی مسرت و — وير ژړلی په زحمت و

زر غو نه پانه وه ژړه — د ظالم خزان له کړه — په ګرزو نو خره پره
نه ورپا ته اب و تاب و — نی زرغاوه نه شباب و

ماول ښکلی پانی خه کړی — ولی هسی رژ بد ه کړی — له دې بڼ خخه واته کړی
مه خه ښکلی ګلالی یی — په ښایست دلمر مخی یی

دی ول خمه وخت دیون دی — یوخوور خی مو بیلتون دی — سبا بېرته بڼ زرغون دی
چه بها ررا شی دی باغ له — زه به راشم ستا سراغ له

پس له هر منی سمسور شته — پس له هر ویره سرو ر شته — چه غم وی دخوښی لور شته
پس له هر منی بها ردی — داقانون د کردګار دی

چه لید لی چا خزان وی — د بها ر به قدر دان وی — په لوړ تیا کښی به دځان وی
خو احساس د ذلت نه وی — هلته زیار د رفعت نه وی

خپل خزان ګوره بهار کړه — باغ د ګلو دی سینګار کړه — زده دژوندو نه ودونه لار کړه
دغه سرد ژوندانه دی — دلته پټ رمز ددې دی

(حبیبی)

## خوشې خوشې

(٤)

لاله وغږ وی ستړگی لهعبر ته پهز ړه داغ شی
ردی ستړگی سوسن گوری سا عتونه خوشې خوشې
جو ړشی لعل لههغو او ښکو چهتو ئېږی و کو گل ته
چپ شه ای ابشاره مکړهد اشورونه خو شې خو شې
چهژوندون لری مړ کېږی ښهغهچه باشر ف مری
کهسبی زر کا لهږ پائی وی کالونهخو شې خوشې
اوږهت پهدام د طمع کښې خو ك کـله شی نیولی
دهمای دیا ره مهزده داداو نه خو شې خوشې
دمرض علاج په کا ردی خهلا مخکښې لهشدته
پس له مرکه خهپه کاردی ماتمونهخو شې خوشې
ز هد عشق په پیاله مست یم محتاج نه یم د شرابو
سا قی مه د کوه مالهداجا مونهخو شې خو شې
چاحا صله خپل مرا م کړ په قو ت د خپلو متو
خوك دی ناست کوی پهزړه کښې ارمانونهخوشې خوشې
په شهباز سر هد شعر به تازه د ژ وند نغمه کړو
د ارباب دزړه غنز یږی د پرعمرونه خوشې خوشې
دفرها دتیشه په لاس کړه که شیرینه معنی غو اړی
پرا ته کلهوی ایرو کښې سره لعلو نهخو شې خوشې
چهروان تر اوبه نه وی اوږ ور هم لهد ریا به
نه یو هېنږ مخلهو ائې دا شعر ونه خوشې خو شې
دا نقصان دشعرنهدی لهخپل ذوقه سرا غو کړه
پهخادم باندی مهوایه تهمتونه خوشې خو شې

(خادم)

## صحرایی گل

(٥)

| | |
|---|---|
| هیو هېنږم یکتیا یانګر هار کښې | ارغنداویادهری رودیه کنار کښې |
| پهبخدی کښې نیسایایا زرنګا کښې | کاپیسا کښې پهواخان یالمپا کا کښې |

اریانا کښې د سوما ترخنګ یو ګل و    چه اشنانه د بورانه د بلبل و
پسرلی ته ئې خوله وازه په خند اکړه    چه دازه یم چه ښایسته مې دا دنیا کړه
پښتو ن کام ته دازما یو خبر یوسه    چه لهر ازدژوند انه نه خبر او سه
چه ګل نه وی پسرلی کښې ژوندون نشته    هما غسی چه نن نه وی پرون نشته
که ژوندی وی تل بهار دی دا جهان    دژوندی دپاره نشته دی خزان

۞ ۞ ۞

لنږ ژوندی شه سرد کانونه بهر کړه    ددنیا په غوږ یدلی باغ نظر کړه
پسرلی کښې هغه ګل چه بید ار نه دی    پسرلی کښې هم خزان دی بهار نه دی
کوم یو ګل چه ګلخانه کښې پر یو تلی    په هر فصل کښې تازه دی غوړ یدلی

له دنیا نه ګلخانه جوړه کړه ځانته
نظر مکوه بها رته اوخزا ن ته

(پژواك)

## ملی مشرحاجی میرویس ته

### خطاب
### (٦)

ته پر مځکه او سید لې    خو نظر دی په آسما نو
ستا په خیال کښې یو رفعت و    ستا نظر کښې کهکشا نو
ډو ب په مینه د وطن وې    په نظر کښې دی افغا نو

قا فله د ملیت مواو اره په ور کېد ووه
یو ته و یښ وی که ته نه وای بس قصه په ختمیدووه

د غزنی نغمه د لسوزه    تادروه په لو یو غرو کښې
غزنو له په ښه ډول    پښتونخوا په ښودرو کښې
پښتنو به نشاط بیا موند    ستا په غزاو په نمو کښې

مقبره کښې بیاد مړو دژوندو اذان دی ووی
دلود ی دد ورقصه وه څه د سوز په شان دې ووی

دګنجکو په قیمت شی    که ځلمی وی سره لعلونه
خدای دی هیڅ ری څوك نه کا    دبل قوم په لاس مریونه
په آزاد وغرو دپښتو کښې    زرغونیږی زمونږ ګلونه »

تا د دی غر و په لمنو غزولی دا غز لی
ارغنداب درو دپه غاړه د وطن د غم بدلې

(د طلوع افغان کالنی ګڼه)

## سپین غر

مختصر شویدی (۷)

مارغه د خیال مې په سپین غره باندې سرشاره گرزي
هوا مې سر کښې ن تازه له دې کهساره گرزي
وینم هر لورته د بلبلو شور ماشور دې پکښې
په شنو نښترو شنه طوطیان مست له چناره گرزي
زلفې د چا به کړي خوري په پستو گوتو سره
زیبا نسیم ته ئې زړه نه طمعداره گرزي
ستا په هوا کښې د ختن نافې سپړلی دي چا
چه شنو وښو کښې دې شپو نکي مست له عطاره گرزي
زړه ور بازان چه دهمت وزر خواره کړي کله
ستا په اوچتو څوکو پاس له افتخاره گرزي
سپین او سپېڅلی غر یادېږې په دنیا او جهان
څکه چاپېره شنه زمریان ستا له درباره گرزي
د اوستا نغمې خوږې شوې ستا له خوږه نرمه
د سوما بوټي خندنگ په خندنگ ستا له کناره گرزي
نکړ پیدا چه سکندر په بل یو ځای کښې چرې
دلې په تا کښې هغه خېز پسې څېر واره گرزي
محمود، شهاب درته کتل نظر د مینې سره
د مینې سترگې ستا ولورته بې اختیاره گرزي
احمد چه ته په دغه لاره ستا نظرو په ده
ستا له نظره په دنیا څکه نامداره گرزي
چه ئې تاثیر د بیخودۍ خوږو نغمو کښې وه ډېر
هغه ارواح ستا په هوا کښې ننگرهاره گرزي
وایه مطرب ته سرود نوی نغمه نوی بنائي
زړې نغمې دي چه پتنگ له سره انکاره گرزي
له نوي رنگه ئې خبر کړه د نغمو صاحبه
دوی به ترکومه ناخبره له روزگاره گرزي

زړونه قوی ارو بیحده ستا د تیږو په شان
بدخواه ته وایو چه دی اری له ګلزاره ګرزی

پښتون بهاری ستا له خندګه په هیڅ شانی نشی
ګله مین پخپل ژوندون کښې لهدلداره ګرزی

تکړه ځوانان به کړی سرونه خپل له تا نه قربان
«رشتین» مین په تورو ګله لهخپل یاره ګرزی (رشتین)

دا یوڅو نمونې چهدلته وښودل شوی ښائی چهزمونږ دتېروخبرو تصدیق وکړی او اوسټونکی دا ومنی چه اوسنی ادب دمطالبو او مضامینو پهلحاظ زیاته تنوع پیدا کړیده او ډېر ښهښه افکار او معانی پکښې ځلېږی مګر داهم بایدووایو چه دانمونی مونږ داختصار اولنه والی پهسبب راوړیدی کنه زمونږ ددی وخت پهاشعار و کښیډېری برجسته نمونیشته چهدپښوا وختو لهاشعار و څخه دتصویر او تخیل پهلحاظ، دمضمون او مطلب پهاعتبار بیخیځان بیلوی چهددی وخت ادبی شاهکارونه ورته ویلی شو مګر دطو الت او او ږدوالی پهسبب ئی نشو لیکلی لکه دښاغلی سید رسول (رسا) پهدنیا ـ دخیبر لهخو اماښام ـ دبېلتانهسندره ـ دښاغلی سمندر بدرشوی ، دا یلم څو که دځلمیتوب ارمانه ـ دښاغلی سیدشمس الدینخان (مجروح) لهفلکسره ـ زهاو سپوږمی ـ پریشانه خوب ـ دښاغلی (حبیبی) (ملیپسرلی) دښاغلی بېنوا (بیوزلیشرق) دښاغلی خادم دتوری برېښ دښاغلی جلالی (دمشرق سیر) او دارازنور شعری آثار چهمختلفو شاعرانو پهمختلفو موضوعاتو کښې لیکلی دی لکه دښاغلی زمریالی (زهاو دګلیخان) او دنورو.... (زخمی زړه) د (پسرلی نغمه) یاداسی نور .. داپورتنی اشعار چههریوئی یوژوندی شعراو مستقل اثر بللی شو څو ر ازهشعری او ادبی ښېګڼیاری چهدغه واړه محاسن دپښوا وختو په اشعار و کښې یوځای نشو موندلی پهدی اشعارو کښې ملی مینه، وطنی شعور ، معنوی رفعت ، شاعرانه احساسات حیاتی تعلیم پیداسیدول ځای شویدی چه بداعت او ابتکار ، رومانتیکی رنګ او شعری خوندپهډېرمهارت سره پکښې ګډ شویدی چهسړی پخپل سحری کیف لوړو مطالبو او بل عالم ته بیائی ، پهپهدنیا کښې دپښتو نولی دنیاداسی تصویر شویده چهدجنت دباغ دبلبلو هوسهم ورتهپیدا کېږی ، دخیبر لهخو اماښام سړی تهله شاعرانهمناظر وسره یوځای دپښتنو زوړ عظمت او هغه جاه وجلال ښیئی چه ځمکه او آسمان سړی ته بل راز ایسی همدا رنګه دا یلم څو که ددومره لوړ او عالی تخیل نماینده ګی کوی چهزما په ګمان هلته به بلندپروازه طیاری هم نشی رسیدلی دمجروح صاحب لهفلک او سپوږمی سره شاعرانه راز ونیاز هم سړی دشعر او بصیرت پهنړۍ کښې ګرزوی او ډېرلوړئی بیائی ، په پریشانهخوب کښې هم یو بل عالم او بله نړۍ سړی تهورښیئی او ډېر وحقایقو له مخې حجابونه پورته کوی .

کهسړی دمشرق سیر او بیوزلی شرق وګوری یقین دی چهدښاغلی جلالی او ښاغلی بېنوا

شاعرانه خیالات به دهرراز ستایلو او نمانځلو وړو بولی او دا به ومنی چه دشاعرانو نظرله غرو او رغو هغه خوادتورو شپو دپردو ترشا هم هرڅه وینی او کوم ته ئی په ښه شان و رښئی - دښاغلی حبیبی ملی پسرلی او دښاغلی خادم د توری برېښ هم داسی اشعار دی چه د پښتنو ملی او حماسی روح ورته زیات احتیاج لری او دپښتو نولی مسیحائی بللی شو .

نوبی له کوم تردد څخه ویلی شو چه زمونږ اوسنی ادب په یوه ډېر ښه اساس روان دی او ددی عصر دهرراز مفیدو افکارو او خیالاتو ښی ښی جلوی پکښې وینو ځکه چه زمونږ پیاوړی شاعران یوازې دنظربازی په دام کښې نه دی نښتی او نه د کورو کلی او خپل ځېر له حاله فارغ ناست دی بلکه په رازراز نغمو او ډول ډول پیرایو کښې کله پاخه پاخه تنقیدونه کوی او کله دامیدواری سندری وائی ، کله د سوزمی په مشاعره کښې او کله دلیو نتو ب په جامه کښې لوړ لوړ مطالب بیا نوی یا دسپین غره له سپینو بازانو سره لوړ لوړ پرو ازونه کوی او ر از راز الهامات له خپلو لوړو غرو څخه اخلی مگر سره له دی ټولو ښېگڼو چه ددی وخت په شعر او اوسنی ادب کښې ئې کورو ځینی ادبی خسارې هم پکښې لیدلی شو چه باید دلته ورته یوه اشاره و کړو .

زمونږ په زاړه ادب کښې ځینی شاعرانه تشبیهات او ادبی اصطلاحات یا القاب او تعبیر ات شته چه په اوسنی ادب او دنن ورځی په شاعرۍ کښې ئې نه مومو لکه ( دزړو گلو باغ ) (دبنگو پیاله)(دگلو لښته) چه په زاړه ادب کښې دمعشوقې د پاره ډېر ځایو نه ویل شویدی یا دزلفو تشبیه دچندړوله لښتو سره او د سترگو تشبیه له گولیو ، د کو تما نچو یا ډیو و سره ډېر ځله شویده یا ورته ملالی او خماری ویل شویدی چه ددی وخت په اشعارو کښې ئې یا بیخی نه وینو یا ډېر لږ په نظر راځی .

همدارنگه ځینی نور کلمات لکه لالی. ملاله ، ملوکه ، شهۍ ، ښارو ، نیمزالی ، چته ، سالو واله ، بی نیازه ، کبرجنه چه دپخوا وختو په اشعارو کښې ئې یو ښه کیف او اثر اینښی دی اوس دغه راز ادبی او عاشقانه کلمات نه لیدل کېږی .

په زاړه ادب کښې دعشق او مینې دحالاتو دتر جمانۍ دپاره هم ځینی مخصوص تعبیرونه شته چه شاعر دعشقی اغېزو بیان پری کړیدی لکه اور لگول ، داورجامې ، په زړه ویشتل ، چه اوس ورځنی څوك دومره ډېر کارنه اخلی . .

ددی وخت په شعر وادب کښې زمونږ ملی عروض هم خسا ره لیدلی ده او ډېره لږه اعتنا ورته کېږی یعنی دپښتو په مخصوصو بحورو او او زانو کښې څوك شعر نه والی او عربی عروض ته زیات تما یل لیدل کېږی ، نو هر کله چه زمونږ عامه طبقه له خپل ملی عر وض او ملی موسیقی سره اشناده او دنورو له عر وض څخه څه خو ند نشی اخستلی نو اوسنی ادب هم ددوی په مذاق دومره زیاته اوقوی اغېزه نه کوی او بر سېره پر دی چه مضا مین و ر ته تر یوه حده نامانوس دی آهنگ ئې هم نه جلبوی .

په اوسنی ادب کښې یو بل چل هم شویدی چه دشعر دظرافت خوانیمگړی پاته ده او دجذخوا

عمومیت پیدا کړی، داخساره ښائی چه ځینی کسان خساره ونه بولی بلکه وئی ستائی او ددی عصر تاثیر ئې وبولی مگر کهسړی لږ څه د حیات ټولی خواوې او درست لوازم په نظر کښې ونیسی هغه به هیڅکله په دی راضی نشی چه دیوه ملت ادب بشپړ جدی صورت پیدا کړی او د ظرافت ما لگه پکښې هیڅ نه وی .

نو مونږ باید علاوه پر دې چه د خپل ادب پخوانی ښیگڼی وساتو او د ملی ادب خوازه مصطلحات او عروضی آهنگ له لاسه ور نکړو د اوس وخت ښې اغیزی هم پکښې خوندی کړو یعنی د خپل شعر وادب ښیگڼی زیاتې کړو او تبدیل ئې نکړو .

هو ! مونږ په ددنیا داوسنی ادب رنگ قبلو ومگر دخپل شعر اساسی تشکیل به نه بدلوو، دمثال په ډول وایم چه د پخوا وخت یو شعر له ماسره شته چه په هغه شعر کښې یوه شاعر دیوه مړی له ککری سره خبری کړی او د هغه د حال پوښتنه ئی کړېده، ککری هم ور سره هغه شان خبری کړی چه د هغه وخت خلقو غوښتلی او ښی ور ته ښکا رېدی، سعدی هم پخپل بوستان کښې یو شعر لری چه دیوه مړی د ککری څخه حکایت او ترجمانی کوی مگر ددی وخت یوه شاعر چه د مصر مومیائی شوی مړی ئې لیدلی دی یائې دهغوی حال ځانته معلوم کړیدی هغه یو ولاړ او دریدلی مړی مخاطب کړی او هغسی خبری اتری ئې ورسره کړیدی چه پدی اوسنی عصر کښې ئې خلق خوښوی او ښې ئې بولی، دشاعرانه تخیل په لحاظ هم دا اوسنی شعر سره دموضوع دیووالی ډیر فرقلری ځکه چه یوه په خاورو کښې پرته ککری او یو ولاړ مړی ا رو مرو د شاعر په نظر کښې فرق پیدا کوی او دشعر رنگ بدلوی، نو مونږ به دغسی معنوی تغیرات پخپل اوسنی ادب کښې قبلو ومگر د پخوانی ادب خوازه تعبیرات او تشبیهات به نه پرېږدو او نه به خپل عروضی بحرونه ترکوو .

همدا رنگه په ددنیا داوسنی ادب څخه ځینی شیان اخلو او خپل ادب به پری بډای کوو مگر د نورو په تقلید کښې به ئې نه ور کوو، یعنی جامې به ئې بدلوو، په موټرو او طیارو کښې به ئې گرزوو، دسینما او تیاترونو سیل به پری کوو خو د پښتو نولی خوی و بوی، څېره او بڼه به پکښې ساتو - مونږ باید له غربی ادب څخه ډرامې او قصې لیکل زده کړو او داروح د پښتو په ادب کښې بیا پیدا کړو مگر دې قصوته داسی رنګ ور کړو چه هر څوک ئې د پښتو نخوا قصه وبولی او دا گمان ونکړی چه مونږ د نورو خلقو افسانی وا یو یعنی پخپلو قصو کښې به خپل حیاتی رنگ ښیو او خپلو نقایصو ته به گوته نیسو . زمونږ په پخوانی ادب کښې هم قصصی روح ډېر ښه ر وزل شویدی او ښې ښې نمو نې ئی پیدا کولی شو خو په اوسنی ادب کښې دا ښیگڼه له لاسه وتلې غوندی ده او په نظم و نثر کښې ئې چندان نه وینو، زمونږ په زاړه ادب کښې ډېری منظومې شته چه د قصې او ډرامې رنگ لری لکه دادمخان اودرخو یا د میمونې قصه چه ډېر خلق ئې خوښوی او زمونږ دملی ادب شاهکارونه بلل کېږی - پدی راز قصو کښې کومه ادبی پانگه چه د زیاتو ستایلو وړده همدغه شی دی چه له پښتنی تعبیراتو او اصطلاحاتو پکښې زیات کار اخستل شویدی لکه دمیمونې دقصی پدی بند کښې :

تهوی دگلو لښته - راپرېوتې د تخته - ښایست درپوری اورشو ځنگه لاړې په ځوانی
ارمانده میمونی

# ملی لوبی

لیکونکی ښاغلی محمد گل خان «نوری»:

ددې مقالې څخه زما مطلب خاص زمونږ ملی لوبی دی، مګر دیوې لنډې مقدمې پر ډول دمقالې لمړی برخه په لاندې عنوانو کښې راځي:-

دلوبو اهمیت- لوبی او صحت- لوبی او تربیت.

دوهمه برخه ئې اصل مطلب او مقصد دی چه په لاندې عنوانو کښې راوړل شوی دی:-

زمونږ ملی لوبی- زمونږ دملی لوبو اقسام او ډول:

۱- کلا- ۲: اتڼ- الف: دنر واتڼ ب: دښځو اتڼ ج: برگ اتڼ- ۳: دګېند (توپ) لوبی او اقسام ئې الف: توپ ډنډه: ب: دګېندا وزده- بازی- ۴: کبډی- ۵: خوسی- ۶: مرغومکی. ۷: خاتمه او دلوبو دنومو او اقسامو فهرست.



ښاغلی محمد گل خان «نوری»

## دلوبو اهمیت:

په دې کښې شک نشته چه نن ورځ سپورټ یادېښتو په عبارت سره لوبو دونه اهمیت موندلی دی چه اوس دژوندون له مهموعوا ملو او اسبابو څخه گڼلی کیږي- دسپورټ اولوبو پر اهمیت باندی نن ورځ لوی لوی متمدن دولتو نه قائل دی، او تل سعی کوی چه خپل هلکان او زلمیان لوبو او ورزش ته تشویق کړي، غواړی چه دېڅوا زړو او معیوبو کسانو پر ځای باندې قوی او غښتلي او غلیچ زلمیان او ځوانان تهیه کړي، چه ددوی په ذریعه سره خپل وطن له غلیمانو وساتي او اباد ئې کړي. هندنبرګ ویلی دی:

په کوم ملت کښې چه سپورټ او ورزش وی نو د ضرورت په وخت کښې تول عسکر کېدلای شي او خپل وطن ساتلای شي.

اعلیحضرت شهید محمد نادرشاه رحمة الله علیه هم چه دورزش په اهمیت ښه پوهېدلی و، ویلی یې دی؛

« چه دلوبو او سپورټ وخت په ځوانی کښې دی ، دیوه ورزش کار دپاره لازم دی چه خپله ټوله قوه وساتی چه ددې قوې په ذریعه سره دورزش وانتها درجې ته ورسیږی ـ نو هر کله چه دی دخپلو قواو په ساتلو سره مکلف سو نو لازمه ده چه د هر ډول افراط او اصراف څخه چه د اخلاقو دفساد سبب گرزی پرهیز و کړی ـ هر کله چه ځوان په ځوانی کښې خپل ځان په ښه ډول سره وساتی ، نو دی به هم د صحت له لامله او هم د اخلاقو له حیثه په آینده ژوند کښې خوشاله وی »

په اتلسم قرن کښې د اروپا په هواد و کښې دوطن دلوړتیا او ساتنی دپاره دوې عقیدې څرگندې شولی :ـ یوه د (فوشه) عقیده وه چه ده ویل : باید دافرادو ذهنی قوا او مدارك او مشاعر پر کار ولویږی ، او ددې د نتیجې څخه دوطن د ترقۍ او دفاع وسایل لاس ته راوړل شی.

بله د ( یان ) عقیده وه ، ده داویل چه تر ټولو اول باید دملت بدنی قوا او اجتماعی بنیه تقویه شی ، بیا دی نو مدارك او مشاعر دعلمی مطلبو دپاره مکلف شی .

همدارنگه لوروك ژان چه له پیاوړو وگروڅخه دی او ده دسپورټ او لوبو په رواجولو کښې ډیر زیار کښلی دی وایی : یوه قوم او ټبر که څه هم هرڅونه د ترقی او تمدن مدارج طی کړی وی یوه داسی ورځ به پر راشی چه دعلم دعروج او دتمدن داعتلا په اثر دماغی کارونه ډیرشی ، او په همدی سبب به ددوی دماغ او روح ستړی او ضعیف شی. اودوی به د ترقۍ د لاری څخه پاته او دپستۍ پر لاری به ولاړ شی ـ نو هغه شی چه دغه ټبر ددې ستړیا او ضعف څخه ساتی خاص سپورټ او لوبی دی .

لوبی په لمړی سر کښې څوپیړی ترمیلاد دمخه په یونان کښې رواج وې ، چه دالمپیك لوبی یې ورته ویلې ، قدیمو یونانیانو دتسوس دزب النوع په معبد کښې و آتن ته نژدې د آلمپ دغره په لمن کښې دخپل رب النوع په نامه جشن جوړ اوه ، په دی جشن کښې به دوی خالصی لوبې او پهلوانی او خوشحالۍ کولې ـ دا جشن به څلرم څلرم کال وروسته په دغه ځای کښې د المپیاد جشن په نامه جوړیده ، ودی جشن ته به دیونان دټولو ولایتو څخه ځوانان او پهلوانان راتلل ـ دا جشن دوی یو مقدس جشن باله او دخپل اتفاق او اتحاد سبب ئې گاڼه ددغه جشن په ورځو کښې به دیونان په ټول مملکت کښې عمومی صلح جاری وه هیڅ به خفقان او خوابدی او جنگ نه سره کاوه .

علاوه پردې چه دې بازیو او لوبو د یونان په ځوانانو کښې یو متحد قوی روح پیدا کړی و ، ددوی ځوانان به دبد و عملو څخه ددی بازیو په سبب را گرزیدل ځکه چه دوی به دیوې بازی په سر کښې تر بلی بازی پوری پخپلو رب النوعو قسم خوړ چه دوی به خپل روح پاك ساتی داسی بد عمل به نه کوی چه ددوی دلوبو او پهلوانی سره منافی وی .

لنډه دا چه دا بازی او لوبی په یونان کښې ودې حد ته رسیدلی وی چه دهغه وخت دمتمدنو ښارو وگروته به ئې دعوت ور کاوه چه د نماینده یا د نندارچیانو په حیث په دې لوبو کښې شریك شی ،

او هم په دغه وخت د متمدنو مملکتو ننداره چیان او سیلانیان د المپیا د لوبو ننداری ته د پاره و یونان او اوړتې ته تلل .

د المپیا په لوبو کښې چه به هر څلمی په یونان کښې بریالی شو اول امیر به شو نو هغه ته به ئې یو د سرو زرو امیل د آفرین په دول ور کاوه په ځایه کښې به ئې وراچاوه، که به دغه سړی مړ شو هغه امیل به ئې د ننه د ده په قبر کښې ور سره پټاوه .

د اجشن د تواریخ په دول د یونان په اخلافو کښې یو له بله پاتې دی څو چه د سکندر مقدونی په وخت کښې په شرق کښې لا هم په یونانی سردارانو او عسکرو کښې معمول و، تر دې حده چه د سکندر د مفتوحه مملکتو په بومی نظام او سر دارانو کښې لا د المپیک جشن رواج شو .

د المپیا لوبی په یونان کښې د سنې او تاریخ په دول استعمالېدلې مثلاً ویل به ئې چه پلانی واقعه وروسته تر پلانی لوبې پېښه شوله او پلانکی د پلانی لوبی د مخه پیدا شوی دی یونانیانو به خاصې سړی په دې لوبی کښې نه شریکاوه او نه به ئې په دغه منطقه کښې پرېښو .

دې لوبو تر هغه وخته په یونان کښې اهمیت درلود چه دوی په ترقی کښې وه، هر کله چه دوی په انحطاط کښېوتل د الوبی هم ورو ورو پاتې دلی څو چه د رومیانو د سلطې په دوره کښې په یونان باندې د المپیا لوبی بالکل هېری شولې او د رومیانو د لوبو نوی طرز چه په دوی کښې رواج و د المپیا د لوبو ځای ونیو - د رومیانو د لوبو اساس په مادی غټو جوائزو و د رومیانو لوبی څو عمر ښې په ترقی کښې وې او دوی به د لوبو د قهرمانانو مجسمې د ډبرو څخه په حجارانو جوړ ولې - بیا په دې سبب چه و هر چا ته به د اجائزی نه رسېدلې بیله څو کسو مخصوصو پهلوانانو چه خپله پهلوانی او لوبی ئې د خپل معیشت او رزق سبب گرزولی وې د دوی لوبو انحطاط و موند او هغه په زړو زړو یونانی پهلوانانو له مینځه و وتل د لوبو شوق کم شو بیا په منځنیو قرنو کښې بېرته د ځینو اشرافو او رئیسانو په واسطه لوبو څه رونق و موند او دوی به کله کله غشی او نېزانو نه ویشتل یا به ئې آسان ځغلول .

د نونسمې پېړۍ په آخر کښې د دنیا اکثرو مملکتو و ورزش او لوبو ته فکر شو او د ایې یقین شو چه بیله بدنی لوبو او ورزش څخه کار نه کېږی او دا تو لو حس کړه چه لوبی او ورزش د ژوندون له مهمو عوامل و څخه دی ټولو ملتو د المپیا لوبو ته مخ ور و گرزاوه او څه نواقص چه ئې درلوده لکه د قدیمو یونانیانو ځینو د المپیا لو بو چه د هلاکت او مرگ خطر به پکښې وو ورو ورو ئې اصلاح کړه او بېل بېل مکتبونه ور ته جوړ شول او د بدنی تربیې معلمان و هلکانو ته مقرر شول تر دې حده د لوبو اهمیت په دنیا کښې څرگند شو چه نن ورځ د ټولی دنیا په مملکتو کښې د المپیک جشن نیول کېږی په زیاته بیا په غربی مملکتو کښې و دې جشن ته زیات اهمیت ورکوی .

لنډه دا چه په اوسنی عصر کښې لوبو او سپورت دونه اهمیت موندلی دی چه څلرم کال وروسته د دنیاد مملکتو په یوه پایتخت کښې بین المللی المپیا جوړېږی - لمړی پلا په ۱۹۳۲ ع کښې

په امریکا یعنې په «لوس انژلوس» کښې جوړه شوه بیا څلرم کال ورو سته په ۱۹۳۶ ع کښې په برلن کښې جوړه شوله ـ دالمان دالمپیك په لوبو کښې دو پنځوسو (۵۲) دولتو شرکت کړی او د شرق دمملکتو څخه ترکیه، هندوستان، مصر، افغانستان او ایران هم پکښې شریک و.

په افغانستان کښې هم د۱۳۱۳ دسرطان د۲۵ څخه دالمپیك ملي انجمن جوړ او رسماً و پیژندل شو، نن ورځ په زروزرو هلکان او زلمیان زمونږ د گران حکومت په توجه سره په بدني تربیه سره تربیه کیږي!

## لوبې او صحت:

که څه هم لوبې پر ته له صحته او بدن د روغتیا څخه اجتماعي او مدني گټې نوري هم دېري لري، منګر دلو بو مهمه نتیجه او گټه اول د بدن تر بیه او د بدن روغتیا او صحت دی.

وګوری! دنفسیاتو پوهان داعقیده لري چه لوبې دانسان دژوندون د طبیعي کارو څخه ګڼلې کیږي، او لوبې د بدن او روح په توازن او تقویه کښې ډېر کومك کوي، دلوبو څخه عزم او اقدام، سعي او غیرت، ثبات او استقامت، دمزاج استقلال، دفکر او عقل رسایي او سلامتي، د اعصابو فعالیت، دوینو جریان او دستړیا څخه هوسایي او نور پیدا کیږي.

د «فیزیالوجي دپوهانو» په عقیده سره لوبې دعضلاتو د تقویې او نمو، دبندو دمحکمې، دوینو دزیاتوب او تصفیې سبب ګرزي، هغه شوك چه لوبې کوي په زړه کښې ئې دوینو فشار په معتدل ډول سره وي، د استراحت او کار انتظام ئې برابروي، خوراك او څښنګ ئې یو ډول او پر یو خیال وي، او اندامونه ئې په یوه تناسب او سره ودوي، او یوه ښکلې منظره ئې تشکیل کړې وي.

اجتماعیون وایي: چه دلوبو څخه اجتماعي بنیه قوي کیږي او لوبې دژوندون بقا او مدني او ملي شرف ساتي.

ودې پورته عقیدو او دلوبو ګټوته که سړی ځیر شي، ددې ټولو مبدا پر ته له صحته بل شی نه دی، یعنې ددې ټولو اساس پر صحت دی او په صحت پوري اړه لري او ټول له پوره صحته څخه سړي ته حاصلیږي ګواکې دلوبو ګټه پوره صحت دی او لوبې د صحت له انتظامه څخه یوه پایه او مهم غړی دی، هر کله چه پوره صحت او روغ صورت سړي ته حاصل شو، بیا نو په دغه نورو شیانو سره هم کامیابید لای شي.

افلاطون وایي: هغه شوك چه مستعد او تکړه روح او بدن ولري، هغه د هر ډول جمال او کمال څښتن کېدلای شي.

بل ځای یوه عالم ویلي دي چه سالم عقل په سالم او روغ صورت کښې دی؟ «ژان لوك» دا پورته مقوله د بدني تربیت شعار ګڼي؟ ژان لوك د بدني تربیت په نظام کښې لمړی مهم جز لوبې او سپورت بولي.

فیسیو لوژی نامرس وایی چه : ـ کار غړی پیدا کوی .

دفرانس دجرید ویوه رئیس په فرانسه کښي داسوال طرح کړچه :- « سړی باید څنګه په عافیت او صحت کښي دهر عمر ژوندون وکړی ؟ » ډاکتر « روجه » چه په پاریس کښي داعلی صحی مجلس او دطبی اکاډیمی عضوو ، ددې جملې او سوال په جواب کښي ئې وویل :

چه دمعیشت نظام باید درست شی ! دده دمعیشت دنظام لمړی شی سپورت او لوبی دی .

ډاکتر « هلوبو » هم په خپل نظام کښي سپورت او لوبی یادی کړلي ډاکتر « بتی بارد » خپل دمعیشت دنظام په جمله کښي سهارنی سپک ورزش یاد کړ .

دا هر عالم چه دا جواب وایه دا ویا ، پنځه اویا ، اتیاو کالو .

څرنګه چه دظاهری بدن پاکی لازمه ده ، همدغه رنګه دداخلی بدن پاکی هم لازمه ده د داخلی بدن پاکی خاص په لوبو او ریاضت سره کیږی ، لوبی او عضلاتی تمرین دموی انسجه مینځی او پاکوی ئې او دوینو دوره او ګرزېده قوی او چابکه کوی ، سینه او زړې او نور اندامونه کلک او قوی ګرزوی سړی د ګړوپ توب او دهضم دفساد او د اشتهاد ورکېدو ، او تنفس داضطراب څخه ساتی ، د چاغښت او دنقرس مرض قطعاً په لوبو ورک کیږی .

لوبی او بدنی تمرینات دعضلاتو نشوا و نما او قوه زیاتوی ، بدن ته نشاط ورکوی ، دلوبو او سپورت په سبب سړی کلک امخته کیږی ، که کله کله سخته او ربړ پرراشی وهر ډول سختی ته ځان نیولای شی ، کوچنی چه تی روی او لاسونه او پښې غورځوی پورته کښته کوی ئې ، داد شوق دپاره نه دی ، بلکه په حقیقت کښي هم هغه مشق او تمرین دی چه دده دصحت او لوی ښت سبب ګرزی .

لهذه دا چه لوبی او ریاضت دهجین (علم الصحت) یو لوی باب تشکیلوی ، دطب او دبدن دروغتیا کتابونه که نن ورځ و کتل شی ځامځا به یو مهم باب او فصل دلوبو او سپورت لری .

## لوبی او تربیت :

لوبی د کوچنیانو دبیخی وړو کوالی څخه لا طبیعی خوی دی ، ترڅو چه لویږی دا طبیعی خوی ور سره وی ، هر کله چه لوی شی دځینو وخت ، او دځینو لږ او عوامل او نورو حوایجو په سبب چه دی به ئې ځامځا ترعهده وزی دا خوی و نه ځنی پاته شی ؟ او کله کله چه لوی شی لا هم د اخوی دځینو سره وی .

وګوری ! ځینی هلکان چه لوبی نه کوی ، او لکه مړژواندی دخونی په کونج کښي پالیږی ګوښه د هلکانو څخه ناست وی ، او مور وپلار ئې وایی چه دغه زمونږ زوی حیا ناکه دی لوبی نه کوی ، په دې وضعیت ئې خوشاله وی ، منګر په دې نه دی خبر چه دا هلك ناجوړه دی ، دلاسه ئې څه نه کیږی ، که نه وای ناجوړه ولی به لکه تږی مرغه داسی مړژواندی ګوښه ناست و ، او دخپل طبیعی نعمت څخه چه د ده د صحت علامه او د ده دلو یښت او و دی سبب دی محروم وو

دشيللر په‌نظر کښې لوبې دژوندون د حوادثو څخه يو وړوکی تصوير دی .
مراد له لوبو څخه هغه لوبې دي چه‌پر منظم‌ډول په‌ډله‌ډله دکوچنيانو په‌مينځ کښې کيږي .
سپنسردا وايي : چه‌لوبې دکوچني دروحي هيجان څرگندوونکې دی ، نو ځکه سالم اوقوي کوچني ترنورو وبازيو ته‌ډېره مينه لري .
هلك چه بازي کوي ، دده دبازيو اولوبو څخه دده ذاتي لياقت اواستعداد ښه‌معلوميږي .
« ژان لوك » عالم په‌تل‌چه‌دخپلو خپلوانواودوستانواواشنايانو کره‌وړغې ددوی کوچنيانو ته‌به‌ئې کتل ، اوددوی دکوچنيانو سره به‌ئې اختلاط کا وه ، اوددغو کوچنيانو دبازيو اولوبو څخه‌به‌ئې ددوی روحيه آثاراوددوی تربيه‌ترمطالعې لاندې نيول؛ژان‌لوك‌وايي:وکوچنيانو ته‌په عين خوز ولوبو کښې ممکن‌دی چه ليك او لوست وښوول‌شي اوپه دوی دی زده شي .
لکه دمخه چه‌مو وويل : اسپارتيانو اوقديمو يونانيانو خپل اولادونه دکوچني والي څخه دلوبو دلاري څخه تربيه کول ، اوددوی څخه ئې قوي اوغښتلي اوجنگيالي وگړي جوړول ، اودلوبو دلا ري څخه ئې په‌دوی دآمر اطاعت او عسکريت پيژ اند ، تردې حده پوري چه کم هلك به‌معيوب اودتربيې اودلوبو قابل اووړ نه و ، هغه به‌ئې واژه .
همدغسې رومانيانو هم‌خپل زامن او ځلميان په لوبو امخته کول او ددې لاري څخه ئې تربيه شوي وگړي اوځوانان تهيه کول .
لنډه داچه نن‌روځ‌ټوله دنيا په‌دې اخته‌ده چه‌دلوبو دلاري‌څخه قوي‌ځوانان تهيه‌اوتربيه کړي اوخپل وطن له غليمانو څخه په‌دوی سره وساتي .

## زمونږ ملي لوبې :

څرنگه چه‌له پورته بيان څخه ثابته شوه چه لوبې دصحت اوبدني تربيت دعنا صرو څخه يو مهم عنصردی ، نومونږ پر دې اوس لنډ څه خبره نه کوو ، دملي روزنې اهميت څونې دی ؟
په‌دې باره کښې مونږ ته اول دخپل ښاغلي همايوني‌زلمي اعليحضرت محمد ظاهر شاه حکيمانه‌مقوله‌اوويل بس‌دی چه د۱۳۱۸ کال دکوچني اختر په‌ورځ ئې خپل گران‌ملت‌ته وويل :-

(هرڅونه چه‌په‌ملي تربيه او اخلاقو کښې کوښښ وکو ، هغونه به‌په‌شرافت سره ژوندون وکو !)

داپورته‌دحکمته‌ډکه مبارکه مقوله بايد دآينده تاريخ‌په پاڼه کښې په‌زرو ليکله‌شي !!!
تربيه په‌حقيقت کښې داده چه په کوچنيانو سره دجامعې دحرکت او فکر ډول و پيژني اوپه‌عادي اوپه‌وئې مني ، هلکان بايد په دې سره امر شي چه هغه افکار چه نن ورځ دده دمحيط جامعې وهغوته تکيه کړې‌وی اوپه‌مغزو کښې ئې‌ناست وی قبول کړي اوپه‌وئې مني -

معارف او د تعلیم او تربیې صلاحیت داره وګړی باید د تعلیم او تربیې داسی اصول کښېږدی
چه د دغو اصولو څخه داسی تربیه شوی وګړی راووزی چه د ملی ښو افکارو او عاداتو
او عنعناتو سره سم د مملکت حوائج رفعه کړی .

داجتماعی علماو داعقیده ده چه تربیه په حقیقت کښې دې ته وایی چه یو شخص چه مر دا لځنی هلك دی
ملی سړی وګرزی ، یعنی دی هم د هغه ملت یو صحیح فردو ګڼل شی ، او ددوی سره په افکارو
او عاداتو او عنعناتو کښې شریك شی که ملت وغواړی چه په دې او س وخت کښې ښه ژوندن وکړی
باید د هغه ملت ټوله افراد په یو فکر او په یوه عقیده وی او یو قوی روح ولری ، او که د ملت
په افرادو کښې د افکارو او احساساتو او معتقداتو پوره وحدت نه وی د هغه ملت به هم
مزه خړه وی .

وګوری :- اسپارتیانو له خپلو او صافو او سجایا او احتیاجاتو سره سم خپل اولادونه
تربیه کول او ددوی به ئې جنګیالی او سخت سره او د زمریانو په لوبو امخته کول .
رومانیانو هم سم له خپلو عنعناتو او قوانینو سره سم خپل غوره زلمیان په جنګ او توره
سره امخته کول .

جاپانیانو تر او سه لا دپخوا ددوزرو کالو د مخه عادات او عنعنات نه دی هېر کړی او مراعات
ئې کوی ، اروپایان سربېره پردې چه نوی تمدن ئې لاس ته راوستلی دی مګر سره له دې ئې د
خپلو زړو افسانو او زړو عنعناتو او پخوانیو زړو ملی لوبو څخه لاس نه دی اخیستی .
او د زړو کلو ځینی عادات ئې ساتلی دی .

څرنګه چه زمونږ پښتون ملت هم ځانته اوصاف او خصوصیات او ښکلی عنعنات لری چه د دنیا
نورملتو نه ئې په دغو اوصافو او عنعناتو سره پیژنی ، باید هر فرد د خپل ملت ، ملیت ، ژبه ، عادات
او ملی او قومی ښه عنعنات وپیژنی ، او په دې ټولو شیانو سره ځان خبر او تربیه کړی .

یوله دغو عنعناتو او عاداتو څخه زمونږ پښتنی او ملی لوبی دی چه په پښتنو کښې خورا د
پخوانی زمانې څخه په دوی کښې په عنعنه سره رواج دی ، مثلاً لکه ملی اتڼ ، خوسی ، توپ
ډنډه او نوری نوری لوبی چه وروسته به ئې بیان راشی - زمونږ باید د اخپلی وطنی ملی دپلار او
نیکه د وختو لوبی چه راپاته شوی دی هیری نه کړو ! او په همدغو خپلو معنعنو لوبو
خپل زامن او ننګیالی زلمیان او ځانونه امخته او تربیه کړو .

په لوبو او سپورټ کښې یوازی دغه مشهوری د فوټبال ، او هاکی او تینس لوبی او سپورټ
مطلب نه دی بلکه د هر ملت لوبی او سپورټ ددوی ملی او اصلی لوبی او سپورټ ګڼل کیږی .
د المپیا لوبی هم داسی مخصوصی لوبی نه دی چه ټوله دنیا همدغه لوبی کوی وبس ، بلکه د
المپیا یا المپیك نوم پردغو بین المللی لوبو د هوغه یونان له وخته د تاریخ د نقطه نظر څخه بانه ی

ایښوښو ی دی ؛ دا لا هم ده چه د بین المللی المپیا په مجلس کښي کال په کال یا څلرم څلرم کال وروسته نوی نوی بازی او لوبی طرحه کیږی ، او د هغو زړو لوبو قوانینو او اصولو ته تغیرور کوی .

زما مطلب او مقصد دا نه دی چه فوټبال او هاکی او ټینس او نوری بیگانه لوبی او عصری سپورټ دی نه وی یادی نه کیږی ، بلکه مطلب می دادی چه اول خپلو ملی لوبو ته توجه وکړو ، هیری ئې نه کړو ، ځکه چه دا عیناً داسی مثال لری لکه د سړی چه خپله ملی ژبه نه وی زده او هیره کړی ئې وی هغه نه زده کوی او په پردی ژبی پسی ، هڅه کوی .

نو اول باید خپله ژبه زده کړی ، بیا د نورو ژبو زده کړه هم کمال دی ! لوبی هم لمړی باید خپلی ملی لوبی زده او عملی شی بیا نو د پردیو لوبو زده کړه او کول هم کمال دی !

زمونږ په ملی لوبو کښي هر ډول لوبی شته ؛ داسی ډیری لوبی شته چه تر دغه عصری لوبو ئې فائده ډیره ده ، ځني لوبی دی لکه اتڼ او توپ ډنډه او نوری . چه د بدن ټول غړی او غړو ټول عضلات په حرکت راولی ، او ددې لوبو څخه فائده اخلی ، زمونږ د ملی لوبو یو لوی مزیت دادی چه ددوو او څلورو کسو څخه نیولې تر سلو لا زیات بلکه هر څونه کسان چه وغواړی پکښي شاملید لای شی ، په اکثرو لوبو کښي د بدنی تاوان او هلاکت خطر هم نشته او لږ اصلاح او تنظیم ته حاجت لری .

د لته زه نوری خبری نه شم کولای او نه ئې لیکلای شم ، ځکه چه یو خو مقاله محدوده ده ، او بل می اصلی مطلب پاتیږی ، اصلی مطلب او مقصد می ددې مقالې څخه لکه د عنوان څخه چه معلومیږی خپلی ملی لوبی او د خپلو ځینو ملی لوبو اقسام او د لوبو طرز دی چه و ئې ښیم و بس .

## زمونږ د ملی لوبو اقسام او ډول:

زمونږ ملی لوبی د نارینه و د اپیلی او د ښځو د اپیلی ، د نجونو دا جلا او د هلکانو لوبی جلا دی ځینی لوبی د نارینه او ښځو سره شریکی دی ، یعنی هغه لوبی چه نارینه ئې کوی ښځی ئې هم کوی ، لکه ملی اتڼ ، ځینی لوبی شته چه نارینه او ښځی سره گډ وی کوی لکه برگ اتڼ او نور .

پښتانه اکثره لوبی پس له درو نیمو یا څلور نیمو بجو د ماپښین ، چه د کاره خلاص او فارغ شی کوی ئې - په نوره ورځ کښي په خپلو شخصی کارو هر یو بخت وی . ځینی لوبی شته چه هغه قطعاً دورځی نه کوی د شپې ئې کوی ، لکه مرغومکۍ او الاداد او نوری . . .

ځینی لوبی دی چه هر کله کیږی ، په ښادی او معینه ورځ پوری اړه نه لری - او ځینی لوبی دی چه په ښادی او میله او بانداړ پوری اړه لری که دا نه وی نو دغه لوبی هم نه کوی .

زمونږ اکثره ملی لوبی منظمی او پر قانون سمی دی هیڅ خطر او نقص هم نه پکښي ایده کیږی که وی هم په لږه توجه سره اصلاح کیدلای شی ، اکثره لوبی د تعرض او مدافعې پر اساس بنادی

دهمداسی‌لو بولو بچیان‌دوي ډلی‌وی، اوهره‌ډله ځانته‌مشر او آمرلری‌چه‌دسرخان‌یامیرالمي‌بولی هره‌ډله دسرخان اوآمرته تابع وی اودده په‌امر اواراده سره په تعرض یا مدافعه پیل کوی اوځان دلوبو په‌ډلو اوګټلو کښې بریالی کوی.

دپښتنو دټولو ملی‌لوبو تفصیل خودلته نه‌ځائیږی ځکه چه دافغانستان د هر کنج پښتانه په‌البته ځانته‌مخصوصی لوبی‌لری، یوازی دقندهار دپښتنو دلوبو اقسام چه‌هلته‌ئي کوی، چه‌زما زده‌دی یاماالیدلی‌دی شلوبښت اوپنځه‌شلوبښت ډوله لوبی‌دی، دنوروځایو دپښتنو په لوبو خوزه نه‌یم‌خبر چه‌هغه‌به څوډوله نوری‌نبی‌لوبی ممکن‌دی ولری.

او س‌مونږ دلته دهغو لوبو تفصیل‌چه عمومی اوقریباً په‌ټولو پښتنو اوپه‌ټول افغانستان کښې ممکن‌دی چه‌رواج‌وی یوه‌یوه نمونه څوچه په‌دې‌مقاله کښې ځائیږی ښیو :

## ۱ - کلا :

کلا یوه‌لوبه‌ده چه‌په‌طرز اوشکل کښې‌عیناً دجمناستیك‌یوه‌لوبه ګڼله کیږی - دالوبه‌پخوا طالبانو په‌بانډارو کښې کوله، دالوبه په‌دوو ډلو کیږی اوهره ډله تر۸ کسو کمه‌نه‌وی چه دواړی ډلی شپاړس کسه شی، دادوې‌ډلی دسرخانان هم‌لری، چه میراهم ورته وایی، لمړی دسرخانان دغه کسان چه کلا کوی ښه‌ترله‌و کاږی غښتلي‌او کمزوری سره معلوم کړی‌نوپر‌مخکه دوه‌خطونه چه شلوبښت یاپنځوس ګامه سره‌لیری‌وی کش کړی، نوهر د سرخان خپل‌ملګری دوه‌ځایه کړی پرهغه خطوئي‌ودروی، یعنی که‌ډله ۸ کسه‌وی نوهریو خپله‌ډله ٤ کسه پر یوه خط اوخلور کسه‌پربل‌خط ودروی وروسته‌نودلوبی‌ودل‌په‌پچه‌سره معلوم کړی‌هریوه‌چه‌یووړه‌نو دهغه بل‌مغلوب ملګری څلورڅلور کسه پرهغو خطوودریږی لاسونه یودبل‌پراوږو سره واچوی چه قوت اوزورئي سره‌یوشی، دغالب ملګری دوه دوه کسه دهغو څلورو کسو پر اوږو مخامخ ودریږی لاسونه‌سره ونیسی، هر کله‌چه‌ئي پراوږو ودرېدل نویودسرخان دیوې‌ډ له سره وی اوبل‌دبلی‌ډلی سره وی دتګ‌حکم ور کړی، دا ډله‌ترهغه‌خطه اوهغه‌بله ډله تردې‌خطه ورو ورو ځي- دوی‌ئي‌پراوږو کلك‌ولاړوی، په‌عین‌تګ کښې داغالب کسان ددې‌خوا اودهغې بلی خوا پخپلوارسره ځینی دخندا فکاهیات په‌مخصوصونارو کښې سره‌وایی، اوجهرهم ورسره کوی مثلاً ددې‌خط کسان چه‌پراوږو ولاړدی دهغه‌بل‌خط خپلو ملګروته ورنار کړی

آهاهاو ! هغه نور په جواب کښې، هاو ! یعنی بلی ! ددې بوتی په هاخوا، د هغه بل‌بوتی په‌ها یوه نجلی ولاړه ده .......

وروسته متصل دواړه خواوی جهر وکی نو په ګډه دا وایی : دوړر ناری که مرجانه مرجانه لېونیه - دا مکرر مکرر ووایی.

بیاهغه بله‌ډله چه‌پراوږو ولاړدی ورته را ناری کړی : آهاهاو !

(لمړي ډله په جواب کښې) هاو!

هانور: که کړا کي کړا کي په‌مانده کي زر که کړا کي اگي ئې نوروړي دي داماوته کړا کي بياجهر و کړي په گهه‌ناري کړې؛ دوپرناري کهمرجانه مرجانه لړونيه.

هر کله‌چه‌دا ډله تر هغه‌خطه‌او هغه‌ډله تردي‌خطه راورسيدله هغه‌سپاره‌څلور کسه‌داوزوځخه کښته‌شي اوهغه‌نور څلورملگري بيادوه دوه کسه پراوزو و دربيږي بيادتـګ‌حکم ور کړي‌څه سردي گرزوم‌همداسي‌وي خويوله سپروځخه‌غوزاريږي ـ هر کله که‌يوغوزارسوراولويده بازي ئې بايلو وله‌بيا نوددوي‌واردي دهغو غالبو کسانو پراوزو به‌همدغسي په‌دوه‌تقسيمه جګ دريږي اوهغه لاندي کسان به‌تر خطوپوري څي‌وراځي ـ که‌ددغولاندي کسانوځخه يوغوزا رشي هم هغسي مغلوب گڼل کيږي دسره‌ځخه به کلاشروع کوي همدغسي‌دا لوبه کوي څوسترې کيږي هر کله‌چه سترې‌شول بس‌ئې کي ،دابازي‌ما په کوچنيوالي دطالبانو ځخه‌ليدلي‌وه‌نوردولو نه‌دي لوبې‌هم درلوده منگر اوس مي‌هيردي ،دهغه‌راهيسي مي بل‌وخت بيانه‌ده ليدلي.

## ۲ - اتڼ :-

داتڼ‌تعبير څيني‌څيني په‌نڅااو رقص سره کوي وايي‌چه‌دا د پښتنوملي نڅا يارقص دی‌منگردا نه‌نڅاده نه‌رقص‌دی بلکه‌داد پښتنويوه مهمه‌لوبه اوورزش‌دی چه‌دبدن ټول‌غړي‌اوهر عضله بيله‌بيله په‌حرکت اوپر کارا چوي چنانچه‌داتڼ دتفصيل څخه‌به‌تاسي ته‌معلوم‌شي.

دالوبه اوورزش‌دخوراپخوانيوزمانوڅخه دپلاراونيکه څخه‌وپښتنو ته‌په‌عنعنه سره‌پاته شوي ده‌چه‌دوي ئې‌په‌بنياديو اوودواوملو اونورو کاميابيو په‌وخت کښي دنو رولوبو په‌جمله کښې لکه‌داسا نوځغلول، نيزه‌بازي، نښه‌ويشتل اونوروکښې کوي‌داځو لوبې‌لکه‌نيزه‌وهل نښه ويشتل داسانو اواوښانو ځغلول اوملي‌اتڼ دالمپيك‌دلوبو پرمنزله گڼل کيږي چه‌پښتانه ئې‌طبيعي‌په دغه‌پورته وختواو مواقعو کښې کوي ،دالمپيالوبې هم‌قريبا همدغه‌لوبې وې.

رقص‌خوبه‌بيل‌ډول دي‌چه‌هغه‌ته‌پښتانه نڅايا ايشله‌وايي چه‌ځانته‌ناز اوغنج او عشقي معاملات پکښي اجرا کيږي ،په‌ملي‌اتڼ کښې‌به هيڅ کله څوك‌د اعلامي ونه‌ويني ـملي‌اتڼ پرخورا منظم‌ډول اوپريوه ټاکلي قانون کيږي هرڅوك‌دا اتڼ نه‌شي کولای څوچه‌زده‌ئې نه‌وي‌او دپرمشق‌ئې نه‌وي پکښي کړی.

ملي اتڼ‌يوه لوبه‌ده چه‌هم‌ئې‌نارينه کوي‌او هم‌ئې‌ښځي کوي‌مگر دنارينه وا تڼ بيل‌اود ښځودابيل دی‌څرنګه چه‌په‌اتڼ کښې‌دوې جنبې‌ليدلي کيږي يوه‌جنبه ئې‌خو شحالي‌او ساعت تيري‌ده اوبل‌خوائې سپورټ‌اوو رزش‌اوبدني تربيت‌ده نوځکه‌په دغه‌اتڼ کښې که دنروي که‌دښځو داتڼ هغه خپل مخصوص‌اشعار وايي‌او خپل‌پخواني غازيان اوننگياليان ښځې‌پکښې ستائي‌اوهم عشقي‌او اجتماعي اشعارپکښې وايي‌چه وهغوته‌دپښتو په‌اصطلاح داتڼ‌ناري‌وايي

د اتڼ ناري ټوله یو بحر او یوه قافیه لري مګر په بېل بېل وزن لګه‌لنډۍ ویلی کېږي د اتڼ ناري نارینه په بېلو بېلو وزنو او ښځې ئې په بېل وزن وایي په اتڼ کښې پرته د اتڼ د مخصوصو ناروڅخه ټکي او کسر ارونکي لنډۍ هم وایي که نروي که ښځې (۱)

په اتڼ کښې که د نارینه وي که د ښځو د نفر یو د تعداد قید هم نشته بلکه په سو و نفري پکښې شاملیدلای شي مګر په عین حال کښې هر څه نفري چه وي بیله معلومولو څنه دوه طرفه کښل کیږي یعنی د اتڼ نیمه قوسی دائره یوه خوا او نیمه قوسی دائره بله خوا کښل کیږي .

## الف - د نارینه و اتڼ اوا قسام یې :-

۱:- ورو اتڼ ۲:- یو بغله اتڼ ۳:- درست اتڼ یا دو بغله اتڼ ۴:- دا یشلي اتڼ - ۵:- د نا ستي اتڼ ۶:- د پروتي یو بغله اتڼ ۷:- د پروتي دوه بغله اتڼ ۸:- د پرمخي اتڼ ۹:- چپه و راسته اتڼ ۱۰:- پټ اتڼ . دا لس ډوله اتڼونه په عین حال کښې په یو وخت او یوه مکمل اتڼ په ضمن کښې په منظم ډول او ترتیب سره په وار وادیا ملهیا بله بنادی کښې اجرا کیږي دا لس ډوله حرکات چه پکښې راشي دا نو پوره او مکمل اتڼ بولي ، او س ئې مونږ دلته لاندی تفصیل لیکو :-

په واده یا مېله کښې چه اتڼ کوي نو د غه ښه اتڼي ځوانان او زلمیان هر څو چه وي سره را ټول شي څوک ملاوي و تړي څوک ئې نه تړي مګر هغه زیاتي جامې لکه بالا پوښ او پټو او نوري وغورځوي (۲) وروسته نو د اتڼ یوه او یوه قوسی دائره تشکیل کړي ، لکه د مخه چه مو وویل په عین حال کښې نیمه قوسي دائره یوه خوا او نیمه قوسي دائره بله خواوي ، که ډول وی ډولچی په منځ کښې و دروي یا په دائره کښې ورسره ګډوي ډول وهي ، دا ځوانان لمړی (ورو اتڼ ) یعنی ارام او منظم اتڼ شروع کړي ، د اتڼ د دائرې و ښي خوا ته ټول په یوه سلا ارام حرکت کوي ، او په عین حرکت کښې یو وار ټول دري قدمه پرمخ ځي بیا دري دري قدمه بیر ته پر شا ځي ، د اتڼ دائره هره خوا په خپلو ار سره دوروا تڼ ناري سره کوي ، وروسته تر ناري ناره وال جهر (۳) سره کوي څو دقیقې وروسته ناره وال دوي دیوه بغله اتڼ پر ډول ، نو (یو بغله اتڼ )شروع کړي ، یعنی په عین ګرزېدو کښې ټول په یوه سلا یو بغل دد ائرې و منځ ته ګرزوي او بیر ته سمېږي راسته پښه د مځکې وهي ، او د پښو و هلو سره سم لاسونه هم سره ټکوي ، څو دقیقې همداسي وي ، بیا ناره د درست یا دو بغله اتڼ پر ډول وا لدوي (درست یا دوه بغله اتڼ) شروع کړي - یعنی ټول په یوه وار ، یو وار یو بغل دا ئرې ته ګرزوي بیا بل بغل ور ګرزوي بیا سمېږي ګرزي .

بیا ناره وا لدوي (دا یشلي اتڼ) شروع کړي - یعنی چابک چابک بغلونه و دائرې ته ګرزوي

(۱) تفصیل او اهنګ ئې د لنډۍ یو په کتاب کښې و ګوري (۲) پاسنی پښتانه ټول خولی او بګړی غور ځوي

(۳) جهر اکثره طالبان کوي ، جهر یو مخصوص غومبر اواوازدی او غوره چه ستونی و پر سوی کوی ئې .

پرمخ ځی پرشاا ځی وښی ادخ ته گرزی حرکت کوی ،لنډ گړی وروسته بیاناره واهو (ناستی اتڼ) شروع کړی، دناری په آخر کښې «دای هم»

لفظ زیاتوی ،په عین گرزېدو کښې ټول په یوه‌وار کښېنې ټول پېر ته ولاډ یېږی بیا ناره

واهوی (یو بغله دپروتی اتڼ) شروع کړی، یعنی ټول په یوه‌وار دولاړی شخه پریوه بغل پریوزی او په بیره بیرته ولاړیږی گرزی - بیا (دو بغله دپروتی اتڼ) شروع کړی - یعنی ټول دو لاړی شخه یووار پرښی بغل بیا پر کیڼ بغل پریوزی اوپه منظم‌ډول بیرته ولاډیږی بیاد (پرمخی اتڼ) شروع کړی - یعنی ټول دولاړی شخه پریوه بغل اوپربل بغل بیا پرمخ‌ی شی بیاچټک‌و لاډ یږی - په آخر کښې سره گډیږی (چپه وراسته یا گډاتڼ) شروع کړی - یعنی دائره نه سره پرې کوی منگر دائره دوه پوره کړی ،یوه دائره کښې خواته ځی ،بله ښی خواته ځی ،په نهایتی چا بکی په مخصوص ډول گرځی شو ستړی کیږی ، هر کله چه یوه خوا یا ټول ستړی شوه نو اتڼ ورو وروبس کوی په یوه پلاتی نه بس کوی بلکه هریو چه ستړی کیږی هغه ځینی راوزی ، کله کله داسی پیښه شی چه دسلو کسو شخه لس کسه سره غورځی اتڼ کوی ها ها شو ټول ئې بس کوی .

پښاتڼ : - داتڼ دښې کیږی منگر په دائره کښې ټول لاسونه سره نیسی لا سونه یو دبله نه سره ایله کوی ،اونه پښې ټکوی چه چپایی وی ،داتڼ په مینځ کښې اوربلوی .

## ب - دښځو اتڼ :

دښځو اتڼ او دنارینه و اتڼ په لمړی سر کښې چندانی توپیر نه سره لری منگر دښځو اتڼ فقط دغه دوه ډوله دی ، ورو اتڼ ، گډاتڼ - ښځی په اتڼ کښې هره یوه هم داتڼ دریه وهی اوهم داتڼ ناره کولای شی ،منگر اکثره داتڼ ناره یوه پخه اوپرمخ گرزېدلې ښځه اول اخلی او بیانوری ښځی په یوه سلا اوازونه ورسره پورته کوی مسری ورسره تماموی - ښځی دنارینه وداتڼ دنارو شخه پرخلاف داتڼ په ناره کښې لنډی اویو مخصوص کسرورسره وایی ،اوپه کسر کښې اکثره دخپلو توریالیو نوموړو پښتنو یاد اوستاینه کوی مثلاً وائی مسته صاحبجانه غازی ، - مرمه شې رووخانه ! تازه اوسې ! اونور . . .

ښځی ځانته علاوه دنارینه وداتڼ پر ناروخپلی نوری مخصوصې نارې هم لری - ښځی لمړی وار ورواتڼ شروع کړی بیاوروسته پرجوش راشی ناره واهوی گډاتڼ شروع کړی. ښځی په واده اوښادی کښې اکثره مازیگر یانیمه شپه یالوی سهار اتڼ اچوی ، دلوی سهار اتڼ ئې اور لگوی یوبل راز کیف لری - بېله دریووهلو شخه ښځی اتڼ نه کوی .

## ج- برګ اتڼ:

په ځینو قامو کښې داسې لوبې شته چه دوی ئې برګ اتڼ بولي برګ اتڼ خپلوان سره کوي په دې ډول چه داتڼ په دائره کښې یو نریوه ښځه سر ه و دریږي ، کله کله لاسونه سره ونیسي ، کله ئې نه نیسي اتڼ کوي .

## ۳- ګیند (توپ) لوبې:

د ګیندلوبې ډول ډول اوجلاجلا نوم لري مثلاً :- اوزده بازي - توپ ډنډه - چه پاڼسو ورته میر بده کان وایي - خانې خانې - شنبې شنبې - لا س کلپ و کلی . ددې ټولو تفصیل دلته نه ځائیږي ، مګر داو زدې بازۍ او توپ ډنډې لنډ بیان به و کو :

## الف- توپ ډنډه:

توپ ډنډه یوه ښه ملي لوبه ده چه قریباً نن و ر ځ تر د غه عصري لو بو د تر تیب ا و اوتنظیم له حیثه کمه نه ده - دالوبه په ټوله افغانستان کښې دپخوا وختو څخه رواج ده .

دالوبه لکه د نامه څخه چه ئې معلو میږي نور مصر ف نه لري پرته له یوه کو چنی ګیند (توپ) اویوې ډنډې څخه ، همدغه یوه ډنډه د ټولو هلکانو بس ده چه توپ په و هي .

ددې لوبې مزیت دادی چه هرڅو هلکان یکښې شریکېد لای شي - لمړی دغه هلکا ن دوه کسه دسرخانان چه په پاڼسو کښې (میر)ورته وایي سره وټاکي - دادسر خانان به ښه غښتلي اوچابك اوراستکار او پرخپلو ملګرو بهوسیله لري - هر کله چه ئې دسر خانان وټا کل نو دغه دوه دسرخانان دا هلکان داسې دوه دوه سره جوړه کوي چه په قداوزور کښې سره برابروي - دادسرخانان یو ځای سره کښېني ، هره جوړه ځې پټ پرځانو با ند ې بېل بېل نوم ایږ دی مثلاً سره ووایي ته ئې توره ، زه ئې توپك بیانو هرجوړه راشي دسرخانانو ته و در یږي ، یوه ته وایي : خانه خانه ایری ایری ؟

خان: دواړه مې ورونه ا- بیا بل دسر خان ته وایي :- ته تو ره غوا ړې که توپك ؟

خان: توپك یا توره - هر یو چه ئې واخیست هغه سړی دهغه دی (دې قانون ته لپړل وایي ، په اکثرو لوبو کښې چه تقسیم د سړو کوی همدغسی لپړی )

هر کله چه ټول سره ولپړل اود هرخان ملګري سره معلوم شول ورو سته نو دلوبې اود توپ و هلو وار په پله سره معلوم کي ، یعني دسرخانان پرشا سره ولاړ شي دیوه غیر معین حد څخه دوا ړه یو یو پل پرمخ ر ا اخلي . هر کله چه د هریوه پل دهغه بل پر پله سر برسو ، نو هغه با زي یووړه - بیا شپیته ګزه یا زیات او کم سره لیرې با لمقابل اوږده خطو نه دسرحد پر ډول کش کړي چه و دی ته (سر)

وايي دغه ډله چه لوبه ئې ګټلې ده پر خپل سرحد يو ځای ودريږي مېرانې دمخه ودريږي او هغه بله ډله پر خپل سرحد تول خپور و کانړي ، مېرانې دمخه ودريږي ، د سرخان يعنې مېرادري وارد په اخر کښې د توپ وهلو حق لري ، او دا نور سړي دوه واره د توپ وهلو حق لري .

دا سړي چه بازۍ ئې وړی ده يو يو پخپلو ارسره بالمقابل دهغې بلې ډلې په توپ وهلو شروع وکړي هغه نور بالمقابل سړي چه توپ ورور سيده را اخلي ئې خپل د سرخان ته ئې ور کوي هغه ئې بيرته ودې بل خان ته راغور ځوي هغه ئې خپلو ملګروته ور کوي چه بيا بيا هر يو په خپل وار سره توپونه ور ووهي هر سړي چه دوه توپه ووهي هغه مړی چه د تولو واري تمام شو نو د سرخان خپل دړې تو په ووهي . لمړی توپ چه ئې وواهه خپلو کسانو ته حکم ور کړي چه ځی ! دهغو سرحدي خط ته دوي تول په بيړه ځغلي ځانونه تر سرحده رسوي . بيا چه دوهم توپ ووهي هم حکم ور کړي چه بيرته خپل خط ته ور ځی د کلابندۍ څخه ئې خلاصوي څو توپ ور ورسيږي دوي بيرته په بيړه را ځغلي خپل سرحدته ځانونه را رسوي ، چه را ورسيدل تول پاخه شول دريم وار چه مېراتوپ ووهي پخپله به تر هغه خپل خطه ځی ور ځی چه را ورسيده نو تول پاخه او ژوندي شول بازي بيا د سره شروع کوي او بازي بيرته ددوی ده .

که مېرادريم وار توپ ور وواهه او دهغو تر سرحده دي ورسيده او هغو ته توپ په لاس ورغی نو ولی ئې مېرانه ځغلي کلا بند شو ددې خوا به ئې ملګری توپ ور وهی دی بهرا ځغلي د کلا بندۍ څخه به ځان خلاصوي .

دغه سړي چه د توپ وواري ئې تېر او مړه شوي دي بيا د توپ وهلو حق نه لري منګر بيرته ځانونه ژوندي کړي ، په دې سره ژوندي کيږي چه دده ملګری توپ ووهي توپ ليري ولاړ شي نو دی په دغه حين کښې الا کی دهغو تر سرحده ځان ورسوي بيرته خپل سرحدته ور سيږي او هغه ئې په توپ ونه ولي نو يوځاو ژوندي شو . يعنې بيا د توپ وهلو حق لري . که هغو کسانو په دغه ترځ کښې چه کم سړی ځان ژوندي کوي يا د مېرا د توپ وهلو په ضمن کښې کم سړی يا پخپله مېرا ددغو د وو خطو په منځ کښې په توپ وويشت نو بازي ئې وګټله نارو کوي چه را ځغلي بازي مو يووړه نو هغو ئې تول ددوي سرحد ته په بيړه را ځغلي او دا نور دهغو سرحد ته ځی که د هغو دخوا ځينې کسان هوري پاته شول - کلابند بلل کيږي بيا چه ئې ملګری ددې خوا توپ ور ووهی هغه فرصت ګوري چه کېنه ليرې ولاړ شي دوی را ځغلي ځان را رسوي .

د توپ په ويشتو کښې بر سر او لاس ويشتل نه دي حساب هم دا بازي کوي او خپل د بر يالي توپ وارونه هره ډله حسابي چه کم خوا ډېر کاميابا و بريالي کيږي .

## ب- د گیندا وزده بازی:

دا بازی لیرل‌نه غواړی نه‌دسرخان لری ، هرڅه هلکان چه‌وی سره راټول شی یوځای ودریږی
یو هلك توپ په‌هوا او غورځوی وایی (نېزه‌ولاړه !) هلکان چه‌دا واروی ځو توپ ترمځکی راځی
ټول په‌بیړه لیری ځغلی تیت‌شی دا هلك چه گیندئې دهوا یا دمځکی واخیست ز ړه‌ئې دی چه‌هریو
په‌وای هغه په‌ولی- هغه‌بل‌ئی په‌لاس‌او سرسره مدافعه کوی ځکه‌چه‌پر سراو لاسو و یشتل حساب
نه‌دی- که‌ئې پرته له‌سره اولاسو پربل‌ځای وویشت نودا ویشتلی به‌چوخ کیږی اودغه ویشتو نکی
به‌پر سپر یږی دانور هلکان به‌ټول ورته راځی و رته‌در یږی، به دی به گیند دمځکی و هی گیند
چه‌دمځکی‌په هواشی دانورئې په‌هوا نیسی بیرته‌ئې ور کوی دی ئې بیا بیا و هی هغه ئې بیا بیا نیسی هر
کله که د دغو هلکانو څخه گیندولیږدنو هغه‌سپور اونورټول هلکان سره ځغلی دغه چوخ هلك
توپ اخلی بیا ئې په‌دېره بیړه په‌یوه پسی وغورځوی په‌ولی ئې که ئې وویشت بیا ئې همدغسی چوخ کی او دی
باندی سپور گیندوهی هغه‌نور ئې نیسی- او که‌خطا شو نوهغه‌هلك په‌بیړه توپ اخلی بیا کم یو په‌ولی
بیا ئې هغه اخلی په‌بل پسی ئې غورځوی- همدا سلسله جاری وی ځوبازی بس کوی .

## ٤ - کبډی :

د کبډی لوبه خوراښه لوبه ده په‌دې لوبه کښې خوراغښتلی او چټك زلمیان په کار دی بې ځانه او کمزوری
کسان ئې نه‌شی کولای په‌دې لوبه کښې دسرخانان معلوموی سره لیرې-هر کله‌چه هلکانوسره
ولیرل- نو یو اوږد خط په‌مینځ کښې کش کی یوه ډله دخط یوه‌خوا ته یوه‌ډله‌بلی خواته‌و دریږی
وروسته دتعرض اعلان وکړی لمړی حمله دسر دخان ده هریو دسرخان چه‌زړه‌ور او چالاک ځان بولی
ناره‌پرو کړی وایی:(کت کبډی ) ورالا کی ترخطو رواوړی متقابل کسان خپو رو کا ږی
ځا ن ځینی ساتی ، ځکه که ده په‌چپلاخه هریووا هه هغه مړ شو، لوبه‌به‌پریږ دی
هلته‌به گوشه کښېنی او هم دامتقابل کسان په‌عین حال کښې چه دد ښمنه ځان ساتی او ځان
دده دچپلاخی څخه‌ژغوری که‌ئې پرده‌وار پیدا شو ټول حمله‌پر کوی که ئې د ی په‌خپل
سرحد اوخپله خوا کښې دننه‌ونیو ټینگ ئې کړ ترخط ځنی راوانه وښت نو دې ئې گواکی مړ کی
دنورو مړو په‌ جمع کښې به کښېنی او که‌ئې ځوك په‌چپلاخه ووهل مړه‌ئې کړل بیرته‌متصل ترخطرا
واوښت یائې ځوك ونه‌وهل اونه‌دی ونیو شو اوبیرته ترخطراواو ښت دهغی خوا دسنی متصل بل
سړی پسی را اوړی که‌ئې پرده‌چمبه جوړه‌شوه مړئې کړی هم‌او که‌ئې دده‌پر ملگرو چمبه‌جوړه
شوه‌مړه‌ئې کړه‌هم ، اوکه ونیو شوهم اوکه بیرته ترخط ځینی وا و ښت ، متصل بیا ددې
خوایو بل غښتلی پسی وراوړی جنگ کوی - همدا بازی تر هغووی چه‌یادیوې خوا ټول
نفری مړی یادبلی خوانفری مړی ، اویا دد واړو خواوونفری مړی .

هر کله چه ټول مړه شول . یا یوه خوا ټوله مړه‌سو له لوبازی تما مه شوه - د نفر ژوندی کېده په تبادله سره دمړه هم کېږی ؛ بریالی هغه کسان دی چه ټول ژوندی یا په ژوندو کښې تر هغو ډېر او په مړو کښې لږ وی .

## ۵ - خوسی :

دالوبه دورځی لوبه‌ده ، دما پښین څخه بیاتر ماز یګره وخت لری . دا لو به هم داسی کسان کوی که لویان وی که کوچنیان چه غښتلی او چټك وی او په‌دې لوبه بلد اومشق ئې پکښې کړی وی .

دالوبه په‌ټولو پښتنو کښې داسی رواج دلکه غېږ ، پښتانه دالوبه‌خوراډېره په کلو کښې کوی اوخوښه ئې‌ده - دالوبه ښه‌ارت اوفراخ پاك اوصاف میدان غواړی، په‌دې لوبه کښې هم‌په‌سوو نفری شرکت کولای شی په‌دې لوبه کښې‌هم دسر خانان سره ټاکل کېږی؛ او جوړه جوړه هلکان سره لېږی چه‌ددوی زوراو سن اوغښتلتوب په پوره‌معیار سره‌تقسیم شی.

هر کله چه‌دسرخانان معلوم او ټولوسره ولېږل دوې ډلی شول - نوهره ډله لمړی وار پرمیدان داسی مقابل سره‌و دریږی چه څوګزه فاصله ئې په منځ کښې‌وی‌اوس نو دلته خپل زوراوفتح اوشکست سره‌معلوموی، یوه‌ډله‌و خپلی‌خواته‌یوه کوچنی‌دخاورو کوټنی‌جوړه کړی چه دا کوټه کلاهم‌بولی - وروسته‌نو د کوټی مقابله‌ډله پخپل‌مینځ کښې‌یو چابك سړی وټاکی چه‌مونږ به‌جنګ کوو اوستاڅخه به‌دفاع هم کووته به‌ځی کوټه به وهې کلابه نیسې، دا سړی چه کوټه وهی‌د کوټی دخوا وهلکا نوته‌هم معارفی اووروئې ښیئی‌چه دغه‌سړی کوټه و هی! هغه‌ډله‌هم خپلی خواته د کلاو کوټی‌دحفاظت اوساتنی دپاره یو کلك سړی‌و کوټی ته‌نژدې ودروی چه‌مونږ جنګ کووته دالته ولاړ اوسه کوټه‌کوره که‌ز مونږ تروس تېره شوله اوهغه سړی راغی کوټه ئې‌وهله ته‌به‌جنګ ورسره کوی کوټه به ساتې، د ی به یو چوی .

پس له هغه دواړی ډلی‌هریو خپله دښی پښې بټه‌ګوته دشاو خوا په په کېن لاس ټینګه ونیسی‌نو بریوه پښه‌په‌یوه لاس‌جنګ شروع کړی ،د کوټی‌دخوا کسان دبالمقابل‌نفریو سره جنګ کوی اوپه عین‌حال کښې‌وس کوی چه‌هغه ټاکلی سړی ته ځانو نه وررسوی اوهغه بوچ کی . ځکه چه که‌دغه سړی‌بوچ کی ګوا کی ټول‌ئې بوچ کړه .

ددې‌خوا کسان جنګ کوی اووس کوی‌چه خپل‌مقابل کسان په‌جنګ اخته کړی اوخپل ټاکلی سړی‌ته فرصت په‌لاس ور کی‌چه ولاړشی‌کوټه ووهی .

هرسړی که په‌دغه جنګ کښې‌پښه‌ایله کړه‌پر دواړو پښوسو هغه بوچ یعنی‌مړدی، داو بو څخه به وزی‌ګوښه به کښېنی‌څونوې بازی‌شروع کیږ ی، که د کوټی دخوا کسانو ځان

دمتعرضینو تر هغه تاکلی سړیو ور ساوه او هغه ئې پوچ کې ګوا کې ټول ئې پوچ کړه مشروطه بازی ئې یووړه ، بازی به بیادسره شروع کوی داخوا به بیا بل سړی د کوټې وهلو دپاره تاکی بیا به لکه پورته ټول جنګ شروع کوی ، لنډه دا که ئې ټول نفری چه دوی ئې د کوټې وهلو دپاره تاکی پوچ کړه نو بازی ئې مکمله په اعلی درجه سره یووړه .

او د کوټې دخوا مقابل کسان چه یو تاکلی سړی ئې دړې واره پرله پسې په درو بازیو کښې کوټه ووهی نو دوی پوره بازی یووړه ، هغه مغلوب شوه ، که ئې لو به بس کوله خوښه ، او که ئې نه بس کوله نو لو به دسره شروع کوی ، دا پلا نو کوټه د متعرضینو یعنی ددې بلی خوا کسانو وی ، خپله کوټه ساتی ، او هغه نور کسان چه د مخه کو ټه د دوی وه کوټه وهی او کلا نیسی .

## ٦ - ډرغو مکی :

دا لو به هم دشپې کیږی ، په مرغومکی کښې دسرخان معلوم ول او د هلکانو لپاره غوا ډی هر کله چه دسرخانان معلوم او هلکانو سره ولپاره دوې ډلې شوې ، نو دغه دسرخانان پچه سره واچوی یا پل سره وکړی ، هر یو چه لاندې شو ، بازی دهغه نورو شوله .

هری ډلی چه بازې بایللو وله هغه دخپل میرا په حکم دمیرا سره ټوله لیری یو ځای پټ شی دا نو رچه بازی ئې وړې ده میرا یو غښتلی هلک انتخاب کړی پر مخی ئې سنګوټ پر یباسی ، یو پټو پاکوسی پرواچوی چه څوک ئې ونه پیژنی ، ورو سته نو دغه نورو ملګرو ته حکم ور کړی چه درې وغږي ځی ټول یو کوښه ځای پټ شی چه څوک ئې موونه وینی ، هغه ټوله پټ شی نو دغه میرا دغه پټ هلک ددوو پښو په مینځ کښې ونیسی نو مقابل کسانو ته چه بازی ئې بایللې ده ناری کړی چه راځی ! هغه ټول سره دمیرا ئې راشی ، هر یو تر پټو لاندی پښه ور ننباسی هغه پټ هلک ئې پښه په لاسو ټینګه نیسی - نو هر یو چه په قوه لامسه کښې ځیر ک وی هغه پښه نه ځینی را ایسته کوی په اتکل سره و وایی چه پلانکی دی ! - که ئې ورو ښو نو بازی ئې یووړه - بیا به ددوی دخوا سړی ور ته پټوی - او که ئې ورو نه ښو په خپل فکر کښې خطاووت نو دغه د پټ هلک میر اخپلو پټ ملګرو ته ناری کړی چه هلی را ځغلی و هی یاستې ! - هغه ټول راشی نو د مقابل ملګری په درو مضبوطه وهی - دغه هلکان دا وهل په ډیر زړور توب سره پر ځانو وړی وس کوی چه هغه خپل ملګری دهغه پټ هلک د لاسو څخه خلاس کړی تر هغو دا هلکان وهل کوی څو ددغه هلکه څخه د هغه بل پښه ایله کیږی - هر کله چه ئې پښه په زوره ځنی ایله کړه ، دوهلو څخه خلاص شول ، منګر بازی ئې نه ده ګټلې بیا به هغه مخنی کسان بل هلک ور ته پټوی ، همداسی بازی جاری وی څو بس کوی ئې . په دی بازی سره خلق ځانونه سخت سر او هر راز حمله ته مهیا کوی .

۷ - خاتمه : - ښاغلی محتر مولو ستو نکو ! د پښتنو ملی لوبی خو ډیری دی ، دلته د ټولو لوبو

تفصيل نه تحا ئېنزي اوس مونږ دلته فقط دهغو لوبو نومونه او فهرست ومحترم مولو ستونکو ته وړاندې کوو چه مونږ په موفق اولاس ته راغلې او ليکلي مودي نو وروسته مضمون بس کوو:

۱ :- ملي اتڼ او دملي اتڼ اقسام - ۲ :- الا داد - ۳ :- تنداه - ٤ :- مرغومکي ۵ :- کلاشر تکڼ - ٦ :- گيلۍ - ۷ :- ړوند چرگک - ۸ :- په انگور وکي - ۹ :- توروخکه ۱۰ :- دريڼه خط - ۱۱ :- دولاړې دريڼه خط - ۱۲ :- ورت - ۱۳ :- خوسي - ۱٤ :- توپ ډنډه ۱۵ :- دگېنداوزده بازي - ۱٦ :- خانې خانې - ۱۷ :- شنبې شنبې - ۱۸ :- کبلوی - ۱۹ :- غيچ ۲۰ :- په بوسه کې - ۲۱ :- غور ځپډنگ (توپ) - ۲۲ :- گوټۍ - ۲۳ :- چغال غار - ۲٤ :- زډه گرگه ۲۵ :- سور مېخ - ۲٦ :- ارغونچکي - ۲۷ :- دور ينه شمال - ۲۸ :- انډوغويې (په لا مبو کي) ۲۹ :- خر په خر گردانه - ۳۰ :- دولا ډنگه - ۳۱ :- اوزده مېنز يانه - ۳۲ :- کانۍ کرپ - ۳۳ :- مېنزي ۳٤ :- اناگۍ او نور اقسام ئې - ۳۵ :- کش با کش - ۳٦ :- هر کاره او چاړه - ۳۷ :- شاکو کۍ - ۳۸ :- جنت اودوزخ - ۳۹ :- زماد خور کوځی - ٤۰ :- ترغچي - ٤۱ :- باچاو زيرک - ٤۲ :- بربر کرک ٤۳ :- خسنکی - ٤٤ :- غېنز - ٤۵ :- لامبو - ٤٦ :- يخمالك - ٤۷ :- نيزه وهل - ٤۸ :- داسانو او اوښانو ځغلول ٤۹ :- دتيزي غورځول او پورته کول - ۵۰ :- لټپېر - ۵۱ :- بانداسکي. ځينې نوري وړې وړې لوبې.

«پای»

## نوټ: ددې مقالې ماخذ:

۱ :- د کابل کلنۍ ۱۳۱۳ - او ۱۳۱۷

۲ :- د کابل مجله ۱۱۳ - او ۱۷

۳ :- د تعليم و تربيت مجله - ٦ و ۸ و ۹ - ۱۳۱۵

٤ :- کيف تعيش مائة سنة تاليف نجيب مندراوی مصری طبع مصر.

۵ :- کيف تحافظ على صحتك. تاليف داکتر - سي - بورنونوفسکي روسي - تعريب سليم فيعين مصری.

٦ :- زما خپل يادداشتونه.

۷ :- دمحمد نسيم خان نوری دقندهار مامور آژانس څخه د ېر تشکر کوم چه زما سره ئې په دې مقاله کښې د ملي لوبو په برخه کښې ډېر کومک کړی دی.

(نوری)

# دپښتو ادب دری مشهوری کورنۍ

ښاغلی صدیق الله « رښتین »

هغه وخت چه دسږ کال دسالنامې دمضمونو دپاره دلیکوالو یومجلس جوړشو اوهرچاته یکښې یویو مضمون سپارل کېده ، نوماته دغه فکر دزغلولو راز غلو لوڅخه وروسته دا پورته موضوع غوره وبرېښېده اودمجلس په خوښه مې ددغې موضوع لیکنه په غاړه واخسته . که څه هم دا موضوع څه قدر دغوږونو سره اشناده اوشاید ځینې کسان به ئې دیوې زړې موضوع په نامه ستایي ، خو سره ددې هم امیددی چه دنوی لذت اوخوند ، او نوی رنګ څخه به خالی نه وی کېدی شی چه ځینې خبری به تکرار هم راغلې وی لیکن دیو جسم او کالبوت ، په بل عبارت و وایم دیو کل په جوړ ولو کښې دا جزاو تکرار دهغه دتکمیل دپاره یو ضروری شی دی اوشاید دا کوم نقص نه وی . مونږ لاتراوسه پوری دپښتو ژبې دیو مکمل تاریخ دلیکلو په لاره کښې روان یو او په دې لاره کښې لا ډېرو قدمونو اخستلو ته ضرورت دی هر کله چه دهر دوهم قدم په اخستلو سړی دمقصد پر اوته نژدې کیږی نوپه دې اعتبار و یلی شو چه هرقدم ځانته موجودیت لری اوهغه داول تکرار نه دی ، بلکه دهغه متمم او پوره کوونکی ګڼل کیږی .



ښاغلی صدیق الله « رښتین »

زمونږ ددې قدم اخستلو اوددې لیکنې مطلب دپښتو ادب ددریو مشهورو کورنیو بیان دی دادری کورنۍ دروښان ، درویزه ، او خوشحال کورنۍ دی . ددې دریو تنو عالمګیر شهرت دهرپښتون اوپه تېره دهرادیب دغوږ پردې خوځولی دی ، هرڅوک ئې پېژنی ، اوپه هرځا ددوی دممتازو نومونو اثر بروت دی . ددوی په کورنیو کښې ډېر تکړه ، غښتلی اود نوم خاوندان خلق تېرشوی دی ، دارنګ ددوی په ادبی مکتبونو کښې پرته له ځیل تېره نور ډېر کسان هم دپیروانو او شاګردانو په نامه لیدل کیږی . زه غواړم چه په دې مقاله کښې ددغو کورنیو ادبی خدمتونه ، او دپښتو ژبې په لار کښې ددوی کوششونه څومره چه معلومات مرسته کوی

بیان کړم ،او ورسره ورسره به په لنډه صورت د دوی څه نه څه حالات هم وښیم ، هو ! دومره خبره ده چه زما د بحث مخه به زیاته ادبي خواته وي . خو لمړی پکار دی چه دغو کورنیو اودغه زمانې ته یوه عمومي کتنه وشي .

عمومي کتنه: تر ډېری اندازې ثابته ده چه پښتو یوه پخوانۍ ، زړه او قدیمه ژبه ده ، دیورپ د ډېرو پوهانو په نظر یه پښتو د آریائی ژبو په قطار کښې د سانسکریت او اوستا سره اړخ په اړخ دودرېږ وحق لري . د پښتو ژبې د دولسو سوو کالو ادبي شواهد دا خبره ښه ز باتوی چه پښتو دومره زمانه پخوالا دیو مکمل ، متین اوپوخ ادب خاونده وه . هو! دومره خبره وه چه څه وخت ئې دغه او وقفې عمر هم تېر کړی دی ، او ددنیا انقلاباتو او د زمانې تودو سړو ئې په طبیعي حرکت کښې څه قدر سستي راوستې وه - بنایي چه دا رنګ کله غلې شوې وی خو سره ددې هم بالکل نه ده مړه شوې ، او دا پاکه ډېوه دفطرت په فانوس ، او د قدرت په فولادی غېږ کښې دخپل سپېڅلي قوم دستر ګو رڼا کولو دپاره تراوسه پوری بله پاته شوې ده .

دامیر کروړ فولادی عزم ، دغوریانو قوی متونه ، دغور دفیروزی غرونه ، دبیټ باباستا جاتونه ، دملکیار درجز سندری ، داتول داسی شیان وو چه هېڅکله ئې دارنا مړه کېدو ته نه ده پرېښودی . له کومه وخته چه دسپوږمۍ ښېرې اودنمر کښتۍ د آسمان په شنه دریاب کښې په لامبو هلولاس پوری کړی دی ؛ له هغه وخته ور سره دټولو کاینا تو : اوبو ، دریابونو ، قومونو ، ملتو نو اوژبو مدوجزر تړلی ، او یو ځای راغلی دی ، په هرشی کښې مدوجزر دفطرت مقتضا ده ، ژبې هم ددغه فطری قانون تر حکم لاندې دی ، پښتو ژبې هم شاید دغسې ډېر مد و جز راوتېر و پاس ایدلی وی

او دا کښتی به ډېر ځله دژوندون په دریاب کښې دزمانې چپو کښته پورته کړې وی ، مګر مونږ چه اوس په کوم پورته والي کښې خبری کول غواړو ، هغه هاغه دی چه دیوزر هجری پاڅه دمخه څخه راپدې خوا شروع شوی دی ، چه دا وخت دپښتو د تاریخی ژوند په لحاظ وروستی زمانه اووروستی وخت دی . ددغه وخت نه څلورسوه کاله پخوا یعنی دشپږمې پېړۍ په اول کښې دمغلو سیلاب رااووت ډېره زمانه پښتو په یو غیر طبیعي حالت کښې پرته وه . هاغه وچه پس له ډېره وخته فطرت په غور ځنګ راغی ، دزمانې دسیلابونو سره ئې ډغرووهلو ته ځان جوړ کړ - سیلاب لا هم دغسې په چپو کښې و څه وشو ؟ ؟ روښان پیدا شو - دپښتو دژوندون دوره شروع شوه اوفطرت دخپل کار په تکمیل لګیا شو پردو مظالمو او ناکړد واحساسات وښورول ، ژبه او توره دواړه په حرکت راغلل ، ژبې

خپل او توری خپل کار شروع کړ ، په دې شان دپښتو او پښتنولۍ خیمې بیا په عظمت او وقار دسلیمان په غرو اوسپینو غرو ودرېدی ، اوادب اوشاعری جنډې وربېدې . هم په دغه وخت کښې د ادب یوه بله دروازه خلاصه شوه - څه وشو ؟ ؟ درویزه ښکاره شو - ده هم قلم واخست ، ژبه ئې پرانسته

په ویلو او لیکلو سر شو - مګر یوائې ژبه او قلم ئې په کار واچول ، او دغه سبب و چه د ادب او شعر او شاعرۍ په خوا کښې پوره کار و شو خو د مشرۍ او واکمنۍ خوا څه قدر نیمګړې پاته شوه . د (۹۵۰ ه) څخه را په دې خوا دادوره شروع شوه او تقریباً سل کاله هغه جنډه چه روښان اوچته کړې وه نه بیا کښېښودل شوه او نه ځمکې له ولاړه ، او هغه قلم چه روښان او درویزه په لاس اخستې و تر ۱۱۰۰ ه پورې په پوره کامیابۍ وچلېد. دې دور ته مونږ په یقین د پښتو د نوې نهضت او رنسانس دور وایو . په دې وخت کښې پښتو د علم او وسعت میدان ته راووته، علمي ذخیره ډېره شوه ، مذهبي او دیني افکار په زیاته اندازه پښتو ادب ته راننوتل - د تصوف او سلوك څخه د پښتو شعر زیاته برخه و مونده، او په دې لحاظ د ادب پوروښان عصر معرفي شو. روښان او درویزه دواړه د پښتو د عملي کولو، پراخولو او سرمایه دار کولو لوی پهلوانان دي، او دامانې په دې دوو محکمو ستنو ولاړه ده .

د مغلو او پښتنو مقابلو ، مذهبي او دیني بحثونو پښتو د لیك او تحریر د ګرته راوښکله ، په تېره مذهب په دې لاره کښې لوی غونډونه ورغړول . په دې وخت کښې د روښان او درویزه په نامه د دوو مشهورو ادبي مکتبونو زنګونه وغږېدل . ډېر خلق د پښتو د ادب د کاروان سره ملګري شول دلیك او تحریر شعر او شاعرۍ عمومي شوق پیدا شو، هر طرف ته د پښتو ناري پورته شوې، هرچا قلم په لاس واخست او فطرت دخپل کار په چلولو کامیاب شو . د (۱۰۵۰ ه) په خوا وشا کښې یو بل لوی سړی په دې میدان کښې ښکاره شو، نوم ئې «خوشحال» و - نه پوهېږم چا - ؟ عبدالقادر او که د تیر، ازمرو، بازانو ، کوترو بلبلو ورته د روښان پیغام په غوږ کښې ووې، خوشحاله شو توره او قلم ئې دواړه په لاس واخستل، بهیر ئې راووهلې ، د عمل میدان ته راووت ، د پښتنو ارمانونه ئې ورژول ، د پښتنخوا په غرونو ئې د پښتو او پښتنوالي بیرغ ورپاوه ، د پښتو دادب یو نوی مکتب ئې جوړ کړ، ډېر نومیالي او مشهور ادیبان ئې وپالل ، ټوله کورنۍ ئې د شعر او ادب په رنګ رنګ کړه ، په دې وخت کښې دادب او په تېره د شعر زمزمې او انګازې پورته شوې او د پښتو دادب یو نوی دور وغږېد. د (۱۱۰۰ ه) څخه را ایسته په ټوله معنی د شعر او نثر یو نوی ادبي مکتب روان شو، او د خوشحال اولاد او کورنۍ پکښې هسې طوفانونه وکړل. دا دریځ واړه کورنۍ تقریباً دوه سوه کاله د الې ګولې په میدان کښې په پوره مړانه وچلېدې - پردو ظلمونو او بیګانه لاسونو هیڅکله د دوی د جوش او رونه مړه نه کړې شول - کلونه کلونه د پردو په مقابل کښې د پښتنوالي بیرغ جګ ولاړو ، ټول شاعران د یوه درد په اثر په یوه آواز لګیا شول حماسي اشعار له پخوانه زیات پښتو ته راننوتل، د پښتو د شعر لمن د تصوفي ، اخلاقي ، اجتماعي او دیني اشعارو څخه ډکه شوه ، شعر او شاعري خپل لوړ مقام ته ورسېده ، نثر هم وسعت بیامونده او نثر او شعر دواړه اوږه په اوږه یوشان پرمخ ولاړل. په دې دوه سوه زیات و کم کاله کښې پښتو ادب سره د ډېرو مقابلو او جګړو د یوز بردست موجودیت خاوند شو او په آخره کښې چه توره او قلم یو ځای

په کارولو بدل دواکمنۍ کامیابۍ ئې هم په نصیب شوه چه آخر بېرته دې لاسونه ووتل او د کار واکې
د احمدشاه بابا په لاس ورغلې که فارسي په بادشاهۍ دلبارونو کښې له یوې خوا صفویانو او له
بلې خوا ګورګانیانو روزله، پښتو په غرونو او د فطرت په غېږ کښې د پښتنو همت او د قدرت
لاسونو پالله او ساتله. خو رنګه چه د هر ځای او هرې زمانې ادب د طبیعي او معنوي محیط د تأثیر
څخه نشي خلاصېدلی، پښتو هم تر دې اثر لاندې راغله، دیني افکار، اصطلاحات، الفاظ، کلمات
پکښې داخل شول ـ عربي او فارسي الفاظو او مذهبي اصطلاحاتو رواج وموند، عربي اوزان
چه د مخه فارسي اخستي وو، پښتو ته هم راننوتل او په دې صورت پښتو په بل رنګ کښې راګېره شوه
دادی پس له دې عمومي نظر څخه غواړم چه دره کورنۍ ځانله ځانله بیان کړم.

## د روښان کورنۍ او مکتب

کومه کورنۍ چه د یوولسمې پېړۍ د پښتو د ادب په ژوند کښې د اولیت او د دومبي‌توب حق لري
هغه د روښان کورنۍ ده. که څه هم په دې کورنۍ کښې ډېر کسان د لیکوالو په نوم شهرت نه لري
دا رنګ په پیروانو او اتباعو کښې ئې هم داسې کسان تېرشوي دي، چه یا خو په نویسندګۍ مشهور
نه دي او یا ئې په نامه څه آثار نه دي پاته شوي او یا مونږ ته نه دي رارسېدلي مګر سره د دې هم مونږ
دا ټوله کورنۍ د پښتو د ادب کورنۍ ګڼو او په دې تذکره کښې ئې یادونه ضروري بولو. دوی
تقریباً سل کاله د پښتنو د مشرۍ واګې په لاس اخستي وې، او ټول سیاسي او مذهبي مشران وو
طبیعي خبره ده چه په دې مشرۍ کښې به دوی په پښتو ژبه ډېرې خطابې، نطقونه او وعظونه
کړي وي چه دا د پښتو د خطابي نثر د پاره لوی خدمت دی خو افسوس چه د دغه قسم اثرونه لکه نورې
خبرې په هوا کښې محوه شوي دي او د کاغذ په پاڼو نه دي پاته شوي. دا هم یقین دی چه د روښان
اولادې به ضرور تحریري آثار هم لیکلي او پرې ایښي وي ځکه چه دا د روښان میراث او د دوی
ضرور باید د هغه میراث ټینګ کړي، او د هغه په قدم تللي وای، مګر دا چه اوس د دوی هیڅ آثار
نه دي پاته د دې لوی علت غالباً هم دا دی چه د پیر روښان مخالفینو د ده کتب او آثار محو کړل.
د ده په مقابل کښې د مغولو بادشاهانو زور، اقتدار او پیسو هم پوره کار کاوه، نو په دې لحاظ
ډېر کم به د ده او د ده د اولادې کتابونه د مخالفینو د سوزولو څخه بچ پاته شوي وي. په دې کار
کښې درویزه هم شریک ګڼل کیږي ولې اول قوي مخالف ئې دی و، نو معلومیږي چه روښانیان
ټول د آثارو خاوندان وو خو د نشتوالي دلیل ئې هم دغه دی چه ووېل شو.

## میا روښان

هغه وخت چه د پښتنو او دیانو بادشاهۍ په وروستیو سلګو کښې وه، وطن د پردو خلقو او مېرځمنو
د پنجو سره مخامخ کېدونکی، او سخت خارجي طوفانونه، باد و باران، زول، سېلي

اوتیاره راتلونکې وه ، پښتو دپروخت مړژواندې اونیم ژوبله پرته وه ، دلودهیانو په وخت کښې
بې له یوڅو شعرونو څخه نور څه نه وولیدلی. پخوانی رنیا چه دغوریانو په زمانه کښې بلمشوې
او بیا سلیمان ما کو او نورو بله ساتلې وه ایله ایله په نظر راتله ، په دې حال کښې پښتو داوړې
غرمو وهلو دغړندو اومړاو بو تو پښان دپشکال دباران په انتظار وه. په دې وخت کښې دکانی گرام(۱)
په آسمان کښې یو روښان ستوری پیداشو ـ دمورخینو په حساب داوخت ۱۵۲۵ ع او ۹۳۲ ه سن و
داستوری څوك و ؟ دا دعبدالله انصاری دزړه توټه دستر گو تور ځوی ، اودپښتو ژبې دژوند
اولوړوالی راتلونکی نابغه و عبدالله انصاری یونیك اوصالح سړی وتوله کورنۍ یې دعلم ، فضل
اوطریقت خاونده وه دروېزه وائی : ( دبایزید پلارنیکه دواړه عالمان وو دورمړ ـ همرښتینی وو
په دین کښې ) وائی چه دا کورنۍ د لودیانو په نهضت کښې د هند جالندهر ته تللی
ده اوسوری او لودی پادشاهان ئې معتقد وو ـ ځینی مورخین د روښان تولد په جالندهر
کښې بولی دده اصلی نوم بازید یا بایزید دی وروسته په پیرروشن میان روښان اودمخالفینو له خوا
په پیر تاریك مشهور شو. دی په قام اورمړ (۲) او انصاری دی. تول تذکره والا اورته ورمړ

---

(۱) کانی کرم په وزیرستان کښې دغره لمنی ته یو ځای دی ـ ښاغلی خوگیانی د ۱۳۱۷ کال
په انیس کښې لیکلی دی چه دغلته داوسپنی کانونه دی نو ځکه ورته د کانو نو کرم یعنی کندهوایی
زما په خیال په دې نامه کښې دوه توجیه صحیح دی یوه داچه دوهم جزئې گرام وی چه په
سنسکرت کښې د کلی په معنی دی اود کلیو دنومو په آخر کښې لکه (کلی گرام اونور) راځی
اول جزئې هم دوه معنی ور کوی یعنی هم د کانو کلی کیدی شی اوهم د کانونو کلی ـ اوبل
داچه دوهم جزئې « کرم » وی چه په غره کښې یوژور ځای ته وایی ـ په دې صورت هم د کانو
کرم یاد کانونو کرم دواړه صحیح ښکاری .

(۲) ورمړ څوك دی؟ داتحاد افغان مجله دا سې لیکی : ) په دېروځایو کښې و رمړ شته خو په
کانیگرام کښې ډېر آباددی وزیراو مسعودئې قدر کوی اوستانه دارئې بولی) دپښتنو دانسابو
کتابونو ورمړ پښتانه بللی دی ، ورمړ دغور له غرونو څخه دسلیمان غرونو ته راوتلی دی او ځای په ځای
خوارهدی ژبه ئې په اصل کښې پښتو وه مگر دېردو الفاظودزیات استعمال په وجه ئې دیو ې بلې
ژبې صورت پیدا کړی دی اخون درویزه وایی چه کانی کرم کښې دورمړو او انصار وپښتنو
قبیلی سکونت لری ـ ددولت دد یوان په یوه زړه قلمی نسخه کښې دیوه بیت د پاسه لیکلی شوی دی
چه روښان په دیو مقصد ـ دپاره ځان ته انصاری وې که نه په تحقیق اورمړ پښتون و (ښاغلی خادم د ۱۳۲۰
په سالنامه کښې دانظریه منلی ده اوویلی دی چه دا نصاری لفظ ددی روایاتو سره داسی تطبیقیدی
شی چه انصاری به په ورمړ و کښې کومه قبیله وی )ددی تول وڅخه معلومه شوه چه ورمړ پښتانه دی
اوروښان هم ورمړ دی چه ځان ته انصاری هم وایی داهم ثابته ده چه ده پخپل مهر کښې بازید انصاری
لیکلی وددوی په ستانه توب کښې هم څه شك نشته ولی چه په میا کانو مشهور دی .

وايي درویزه هم ورمړ بللی دی. داورمړ ویړ کی په وړو کتوب کښې دښه خوی خاوندو په تندی کښې ئې دهښیارۍ اوپوهی نښې ځلیدلی دهمدردی، کوم حس چه دده په زړه کښې پروت و، هغه لا په وړوکوالی کښې په کارلاس پورې کړی و. دهلکانو سره به ئې مالونه پیول هغوی به لوږی کوالې اوده به ئې مال ته فکراوپام کاوه وروسته ددهٔ دتعلیم دوره شروع شوه دپلار ډیر کوشش داستاذانو توجه اودده ځیلي فطري پوهی دده نه په ځوانۍ کښې یوزبردست عالم جوړ کړ په عربۍ فارسی ، هندی اوپښتو کښې دپوره قدرت خاوندشو-په کور او بهر یې دعلم تحصیل نه پریښود ه خودده دعلمی تندی دمړولو اواوی ظرف ده کولو دپاره رواجي تعلیمونو چیرته کفایت کاوه داماغزه دیوډیر لوړشي په لټون پسی ووده هغه عالی فکردڅوند دیوې ډیرې لویې مسئلې په تیاره کوټونو کښې لارپیدا کړه یعنی دتصوف اوبیادوحدة الوجود په پیاله مخمور شوبه دې و خت کښې څرنګه چه امید کیده دی یو لوی سړی اوداوی دماغ، فکر، علم اوفضل خاوندشو ددبخارا اوهند سفرونه هم کړی دی په دې سفرونو کښې ئې لهلویو خلقو سره ناسته ولاړه اوصحبتو نه شوی دی وايي چه ده دمشهور نانک سره هم مناظرې اړولې (۱) .

شخصیت: میان روښان دیوډیر لوړ شخصیت خاوندو-دادب، سیاست او فلسفی درې واړو نابغه بلل کیږی دتاریخ اوادب مطالعه کوونکی او مبصرین ورته دسیاسی مبلغ ادیب اوفیلسوف دخطابونو حق ورکوی ډیرہ زمانه، دده دخپل فکر او تدبیر په وسله دمقتدرو مخالفینو په مقابل کښې ځیله غلبه وساتله ده یوزبر دست فلسفی اومعقول دماغ درلود اخون درویزه وايي چه ده دې په عقلي دلایلو کښې ډیر مړنی او قوی و لویولویو عالمانو به ورسره بحث نشو کولی یوزیرک سړی و دبستان مذاهب لیکی چه دمرزا محمدحکیم دهمایون دزوی په مجلس کښې ډیرعالمان دده له مناظرې څخه عاجز شول ده به داسی خبرې کولی چه هوښیار خلق به ورته حیران وو رښتیاني فضل هم هغه دی چه مخالفین پرې ګواهي ور کړی - درویزه ځای په ځای داسی الفاظ ډیر ویلی دی (بازید په عقل پوره وهوښیاری اوزیرکی ئې ډیره زده وه) دده شخصیت مونږ په دی څو کلمو کښې لنډ ځایوو: روښان دفکر سیاست، قلم، شعر اوادب دمیدان پهلوان، اویومؤلف، مبلغ، واعظ، عالم، شاعر او ترلیکو نکی و. سربیره په دی قاید، سیاس، مفکر، دادب حقدار او یوزړه ور توریالی عسکرو .

تبلیغ او اصلاح: روښان یومقتدر مبلغ و هرچا ته به ئې په ځیله ژبه ښوونه او تبلیغ کاوه چه دتبلیغ ، اشاعت، وعظ اونصحیت اودقوم دبیداری-وخت راغی ، ملانې وتړله اودې میدان ته

---

(۱) کورونانک دسکه دمذهب بانی دی، په ۱٤٦۹ ع دپنجاب په شیخوپوره ضلع کښې پیدا شوی دی دتوحیدخواته مایل ، اوتر ۱۵۵۲ ع پورې ژوندی و .

دښنوله مقابلې څخه دروښان اودده دزوندو نزمانه یو، ده په ۱۵۵۲ ع به روښان تقریبا د(۲۷) کالو و .

راووت ، دهیخ مشکل پروائې نه کوله د خپلې ارادې د پوره کولو او د پښتنو د بیدارۍ اویووالي په لار کښې ئې دپښتنخوا ټول غرونه ، لوړې ژورې و غو ښتې ، هر ځای ته ئې دخپل تبلیغ آواز ورساوه مغو لی با دشاها ن دده دارادې په مقابل کښې را پور ته شول سختې سختې جګړې وشوې خوداغښتلی او تکړه میړه له خپله عزمه وانه وښت او تر آ خره ئې خپل تبلیغ په مړانه وچلاوه او بیائې دا امانت خپل اولادته وسپاره چه تر ډېره وخته ئې په ښه شان دپښتنو نوم ، عزت اوروح لوړ اوخو شحال وساته . دده تبلیغ یوازې مذ هبي نه و بلکه دی یوسیا سي مبلغ هم و ، دپښتنو دوحدت، اتفاق، خپلواکۍ یوصحیح آرزومن و ـ دا به ئې ویل چه مغول پر پښتنو ظلمو نه کوي باید ځان دهغو له جغه خلا ص کړو ـ دده ټول عمر دقوم دا صلاح دپاره وقف و ، ده غوښتل چه پښتانه دمغولی طا قتونو په مقابل کښې کـلك ودر وي او دمقاومت روح پکښې وا چوی .

ادبي خوا : زمونږ دمطلب اصلي ټکی هم دادی ، میاروښان په یقین سره ځنګه چه په سیاست او مذهب کښې یوه و ؛ دغسې دادب علمبردار هم دی لوی کار چه دادب په خوا کښې تر سترګو کیږي هغه دپښتو په لار کښې دده دقلم اوژبې خدمتونه دي دژبې خدمت ئې خطابي شرو نه وو ؛ خوافسوس چه له هغه شخه زمانې څه نه دي ساتلي ـ هرڅه چه تحریري شردي په دې حصه کښې دده یو کـتاب چه خیر البیان نومیږي موجوددی . دا خبره مونږ په پوره زړه ور تیا کولی شو چه دزرمې هجری نه راپدې خوا چه دپښتو دادب کوم نهضت پیدا شوی دی ؛ دهغه مؤسس اوسر لښکر میاروښان دی؛ او ددرو یزه د کورنۍ ادبي خدمتونه هم دده د میدان ګرمولو په وجه دي ، دالو به اودابازارده تود کړی دی ، اخون درو یزه پخپله دخپلو تالیفاتو سبب د میان روښان تالیفات ګڼي اواصلي علت ئې دی شمیري ـ د روښان دنشر یاتو په رڼا کښې پښتنو اد بیاتو ښه توجه کړې ده ، دپښتو ادب رنګ اور ونق پیدا کړ ی دی او هر ډول تصو فی ، اخلاقي ، اجتماعي ، دیني اونور مطا لب زیات شو ي دی . په ا سا سي ډول دغو مطا لبو دروښان دتعلیم اوښودنو په اثر دپښتو په شعر کښې ځان ښکـاره کړی دی . روښان دپښتو دادب نوی دورشروع کړ ، داسې لارئې روانه کړه چه وروسته تر ده ، دده پیروان او اولاد په هغه لا رسم ولاړل ، لنډه داچه دپښتو ادب دیونوی دور اوادبي دبستا ن مؤسس ، اود یو نوی طرز اوسبك موجد و بلل شو .

تا لیفات : ددرویزه اونورو مورخینو په قول روښان ډېرو تالیفاتو او کتابونو خاوند دی چه په پښتو ، فارسي ، عربي او هندي ژبو کښې دي ، کوم چه مشهور او معلوم دي دادي ؛

۱ـ حالنامه دده دخپلو حالاتو په باب کښې ده ـ ۲ـ مقصو دالمؤ منین په عربي لیکل شوی دی.
۳ـ خیرالبیان په عربي پښتو ، فارسي ، هندي ژبو دی خومطلب په ټولو کښې یو شی دی .

مونږ ئې ددې کتاب دتفصيل سره کار لرو - خيرالبيان دطريقت اوشريعت اوديني مسئلو بحث کوي، دا کتاب دخينو مستشر قينو گوتو لاوغلي دی لکه راورتی (۱) سره يئسنر اس - مارکن ستيرن هم ليدلی دی، خونسخې ئې کمې پيدا کيږي - داتحاد افغان مجله ليکی: چه دا کتاب دپښتنو دسياسی، اجتماعی اصلاح او اتفاق دپاره په قرآن او حديث موافق يو کتاب و، دولت شاعر ئې هم په آيات او حديث برابر بولی:

« په خلور لفظه ئې خيرالبيان روغ که — موافق بنه په آيات په حديثو نه »

صمصام الدوله وايي: (چه خيرالبيان دوحدت وجود په اثبات دپخوانو لويو خلقو منتخب اقوال دی) دخير البيان يوه نمونی چه په پخوانو سالنامو کښې نشر شوی دی، هغه تولی فقهی اوشرعی احکام دی؛ نوغالبه داده چه تول خيرالبيان به هم ديني اومذهبی مسايل وی. اخون درويزه وايي چه دا کتاب تول روښان نه دی جوړ کړی بلکه ملا ارزانی شاعر هم پکښې څه برخه اخستې وه.

خيرالبيان نظم و که نثر؟: د درويزه له اظهاراتو څخه معلوميږي چه روښان په پښتو ژبه شعر وايه او دپښتنو دپاره به ئې شعرونه جوړ ول) دروښان کوم بل پښتو کتاب پرته له خيرالبيان څخه نه دی معلوم، نو څرگنديږي چه درويزه هم دې کتاب ته نظم وايي، اودده په اصطلاح خير البيان نظم و. دخير البيان عبارات عموماً مقفی او کله کله موزون هم وی نسبت نثرته دنظم رنگ پکښې زيات دی، که څه هم دنظم په قانون اوعلمی تعبير ورته سړی نظم نشی ويلی بلکه دنثر په (مرسل، مرجز، مقفی) قسمونو کښې دريم قسم نثر دی، البته نيم عروضی اويا داسی نيمکله نظم که ورته سړی و وائی کيدای شی مگر دا خو زمونږ تعبير او فيصله ده په خپله دوی اودهغه وخت اصطلاح ورته نظم وايي او نثر ئې نه بولی. داقسم شعر د دغسی ديني کتابونو دپاره يو مخصوص سبك و، چه تر ډيره وخته پوري چليدلی دی، اوداچه دشعر پوره پابندی ئې نه لرله، څيني مسری به ئې لنډی او څيني به ډيری اوږدی وی داصرف دآسا نتيا دپاره وو څکه چه دديرو مطالبو دبيان په وجه ئې لفظی پابندی په ځان نه کښېښوده بلکه يو آزاد غوندی شعر و.

دخيرالبيان دليك او سبك خصوصيت: راورتی داسی وايي (چه دخير البيان د املا طرز ددقت وړدی - داخصوصيت لري چه خو کلمی سره نښتی ليکی لکه (پشيپه هر گرزی = په شپی ډېر گرزی) دخير البيان څيني حروف ددرويزه دڅينو حروفو سره مطابقت لري، دده داملا خصوصيات دمرزا په ديوان کښې هم ليدلی شي، دی دوزيرستان دی مگر دهغه ځای دژبی په طرز ليکل نه کوي، دده ژبه زياته دکلاسيکی مروجو اد بياتو سره مطابقت کوی او د ليکلو

(۱) کومه نسخه چه راورتی ليدلې ده (۱۶۷) مخه ده، خط ئې نستعليق دی او دروښان مريد فقير بهار طوسی د (۱۰۶۱ هـ) په رمضان کښې ليکلی ده.

معیار ئې خپله لهجه نه ده مثلاً د (لیار، څلویر، په ځای لاراو څلورلیکی) د نور تفصیل دپاره
د ۱۳۲۰ په سالنامه کښې د پښتو د نثر متانه وګورئ.

## د روښان اولاده

د میاروښان په اولاده کښې پرته د مرزاخان څخه د بل چا کوم تحریري اثر مونږ ته نه دی رارسیدلی او نه پری علم لرو، لکه چه د مخه مو هم ویلي دی غالبه داده چه د مخالفینو د منافقت له امله به روغ نه وي پاته شوي. د ده ځامن، نمسی کړوسی ټول د لوی شان او نوم خاوندان تېر شوي دي د میاروښان په لاس چه کمه مشري وه، هغه دوی هم ټینګه کړه، او دغوی مخالفینو په مقابل کښې ئې تر آخره توره، مړانه او متانت ښکاره کړی دی. د میاروښان د ځامنو په شمېر کښې اختلاف دی، څوك ئې شپږ او څوك ئې پنځه ګڼي، دغسې ئې د کړوسو او نمسو اصلي شمېر هم په یقین نه دی معلوم، خو څو مړه چه معلوم دي لاندې ښوول کېږي.

۱- شیخ عمر: شیخ عمر د روښان تر ټولو مشر زوی دی، د پلار د مرګ نه وروسته د هغه په ځای کښیناست، ځان ئې د پښتنو پاچا ګاڼه، او خلکو به عشر او خراج ورکاوه: اخوند یخوالي د بر جنګونه وکړل، بیا د دلازاکو له لاسه مړ شو، په تور بیله کښې د اباسیند نه پورې غاړه ښخ دی. د مرګ تاریخ ئې د (۱۰۰۰ هـ) په شاوخوا کښې معلومیږي.

۲- خیرالدین: د میاروښان زوی دی، د شیخ عمر په جنګونو کښې شریك و، بیا د شیخ عمر سره یو ځای وژل شوی او له هغه سره یو ځای ښخ دی.

۳- نورالدین: د روښان دریم ځوی دی، په اشنغر کښې د مغولو په اشاره وژلی شوی دی د شیخ عمر په مشری کښې په ټولو جنګونو کښې شامل و.

۴- کمال الدین: د روښان څلورم ځوی دی، د اکبر بادشاه په بند کښې مړ شوی دی.

۵- جلال الدین: د روښان په ټولو ځامنو کښې مشهور او د لوی شان او عزم خاوند دی، په ۱٤ کلنی کښې د مشری او ریاست په ګدی کښیناست. د مغلو سره ئې سخت جنګونه وکړل، د هند مغلی مورخین ورته (جلاله) وائي، د پښتنو ټول غرونه د ده په لاس کښې وو، د ده د جنګی او توری کارنامی ډېرې مشهوری دی، د اکبر غوندی بادشاه د ده څخه په ویره کښې و، د بستان او نور کتابونه لیکی چه دی عادل او ضابط سړی و، دولتخان داسی ستایلی دی:

په دیدن ئې یاران مست وو بې شرابو — په ماتندي ئې مخ د خور کلم قمر و
په هیڅ دود ئې له غلیمه ویره نشوه — مړنی شیردل ځوانمرد عادل سرور و

جلال الدین په (۱۰۰۹ هـ) کال دغزنی په جنګ کښې مړشو او اکبر ئې په مرګ ډېری خوشحالی وکړی .

۶ـ وحدت علی: دروښان شپږم زوی چه په شك دی وحدت علی دی تاریخ فرشته لیکی چه دی دجلال الدین ورور و ، دولت خان هم دروښان شپږ ځامن ښودلی دی مګر دا شپږم تن دده په دیوانکښې «دولت شیخ» راغلی دی لکه چه وایی : (نورالدین خیرالدین کمال الدین و دولت شیخ) نو احتمال لری چه «وحدت شیخ» به وی ، «دبستان» ئې شپږم ځوی نه دی یاد کړی هو! دومره وایی چه دا کبر بهادرانو د جلال الدین آل وعیال دوحدت علی نومی یوسری سره پایتخت ته بند یان راوستل غالبه داده چه دی هم دروښان زوی دی ځکه چه د جلال الدین دبال بچ سره خو به پردی خوك نه و . دی هم د مغلو په بند کښې مړشوی دی .

۷ـ کمال خاتون: دروښان لورده تولو تذکره لیکونکو دده په زوزاد کښې ذکر کړی ده نور معلومات ئې نشته .

۸ـ احداد : دشیخ عمر زوی او دروښان نمسی دی پس له جلال الدینه د پښتنو مشر شو د پلار نیکه دارشاد په مسند کښیناست دی هم ډېر شهرت او نوم لری د مغلو سره ئې سخت جنګونه وکړل دپلار نیکه میراث ئې ټینګ وساته دبستان لیکی : چه دی یو عادل او ضابط سړی وا ود خلقو حق به ئې خلقو ته ور کاوه . احداد بیا په (لواغره) کښې چه دریاست مرکز و ، د مغلو له خوا قلابند او مړشو دده سر ئې چه جهانګیر ته راووړ ، شکر ئې وویست اولادی ئې تیری شوی ، دده د مرګ ورځې ته احدادیان دوصال ورځ وایی . ملامست ځمند په یو ځای کښې دده مرګ داسی یادوی :

نن خبر دا عالم وایی چه بادشاه دجهان مړ شو لکه دریا ب هسی ر وښان و همه خړ شو
په رعیت خلق به کله قراری وی وه بی بختو چه د تیر اله منځه ورك احداد ورمړ شو

دولت داحداد په صفت کښې وایی :

داحداد صفت هر ګوره له حد تیر دی داسلام په کار تیر شوی تر خپل سرو

۹ـ میرزاخان : دنورالدین زوی او دمیا نمسی دی دی نیکه په تصرفی افکار ورنګ ، او له هغه نه ئې فیض مو ندلی دی دتصوف پاخه افکار لری عالم او ادیب سړی و په خیبر کښې ئې هما ستو ګنه کړی ده دی دشاهجهان په وخت دد کن په جنګ کښې په (۱۰۴۰ هـ) کال شهید شوی دی مرزا په تصوف کښې دیو لوړ مقام خاوند او دوحدت دباغ ګل وتول ورو ستنی شاعرا ن ئې پیژنی دی دروښان دعلوم مظهر او دهغه دعلم دښار در وازه وه لکه چه دولت وایی :

دمرزا دنورالدین صفت به خو کړم میان روښان دعلم ښهر او دی ئې درو

په پښتو شعر کښې دتصوف او سلوك علمبردار ، دعلم او تصوف کان بلل کیږی خوشحال خان ورته دپخی او تللی وینا خاوند وایی دمرزا دیوان دعروضی شعر یوه غوره نمو نه ده د خیر البیان

دسبك پیروي ئې نه ده کړې بلکه هغه افکار ئې په یو ښه او ښایسته قالب کښې اچولي دي دده شاعري دمعنی شاعري ده نو ځکه ئې په الفاظو دسختی او نا مانوسی اعتراض کېږي په دې دوو بیتونو کښې ئې ښه تربیه وي او اخلاقي درس پروت دی .

که بها نه په دباغبان تربیت نه راځي      دغه دومره فیض به چاوړ ده له پالېزه
په ظاهر جا مه فقیر په خو ي بخیل ئې      اکه نغښتی په اېر وتازه سکر وته

دده د تصوفي جذباتو د اظهار په نمونه کښې دا یو څو بیتونه راوړل کېږي :

چه دیار په نامه مینه د مړه دم کړم      دغه یاد به ئې د خوږ خاطرملهم کړم
عام و خاص په هسې حال را خبر نه دی      چه په کومه تخته کښل په کوم رقم کړم
په نیستي کښې له هستیه تعجب دی      چه دا څاڅکي له محیطه سره ضم کړم
په یکتا نظر به وا ړه عا لم وینې      کل اشیا به ورته جام لکه د جم کړم

۱۰ ـ پیرداد: د کمال الدین ځوی او د میانعیم دی دولت ئې داسې یادوي :

مست پیرداد د کمال الدین محب رڼښتیني      په ساعت د حرب دلیر شجاع زړه ورو

۱۱ ـ الهداد: د جلال الدین زوی او د میا نعیم دی ډیر مشهور او لوی سړی و دولت وایی:

الهداد د جلال الدین غازی له صلبه      انسا في عادل سخي صا حب نظرو
په ښائیست په خوی په خوان په ور کولو      بل امیر دده څوك چیری بر برو
منفعت ئې رسېده کو نه ي یتیم ته      مهر بان په درو یشان لکه پدرو

صمصام الدوله لیکي: چه دی یو زړه ور ، ځوانمرد بافکره او د ښو اخلاقو خاوند و، الهداد په (۱۰۵۸ هـ) کښې مړ دی .

۱۲ ـ کریمداد : د جلال الدین زوی دی ، هر مند سړی و ، د مغلو په مخالفت کښې بند ی شواو په (۱۰۴۸ هـ) کښې د شاهجهان په امر ووژل شو ، دولت ورته شهید وایی .

۱۳ ـ هادیداد : د جلال الدین ځوی دی ، د خپلی کورنی سره هندته جلاوطن شو ی ، او په (۱۰۶۶ هـ) کال کښې مړشوی دی .

دولت وا ی : په همت ئې ډېر د ښه په نظر ابر وو ـ په یو اځې ځان د ډرست لښکر په سر و

۱۴ میاداد : د جلال الدین څلورم ځوی دی دولت وایی چه ده هم د شهادت مرتبه موندلي ده لکه چه مغلو به وژلی وی :

کریمداد میاداد ئې ورونه وو باور کړه      په هر هر یوه کښې څو دوله هنر و
مرتبه د شها د ت و مو نده د وا ړو      په رحلت ئې دلګیر شوی یار ا کثرو

ملا مست هم یو میاداد یاد کړی دی :(او میاداد سخی سړی د فقیر یار و) د میاداد په نوم یو شاعر هم شته ، اشعار ئې نه دی لیدل شوی مګر و رو ستنو شا عرانو لکه مرز احان دده نوم اخستی دی

(بل اخون میاداد دعشق په میو مست و) دمطیع‌الله دقلمی دیوان له یوه لیکه ئې هم پته لگی-
نو احتمال اری چه دا شاعر میاداد هم دغه دروښان مسی وی یا هم یقین نه دی چه هم دی ، دی که بل؟.

۱۵ ـ الائی: دجلال الدین لور او داحداد ماینه ، او یوه ښائسته ، پوهه ، هوښیاره ښځه وه.

۱۶ عبدالقادر : داحداد ځوی دروښان کړوسی کیږی ، دپلار دمرگ نه وروسته دخلافت په مسند کیناست ، دشاهجهان سره ئې جنگونه وکړل او دنیکونو په قدم ولاړ .

دولت وایی : دښمنان به ور ته ودرېدلی نشو        په لښ یارئی په غلیم باندی ظفر و

دی بیا دخپلی مور الائی سره دشاهجهان په بند کښیووت او په (۱۰۴۶ ﻫ) کښې مړشو او پېښور (۱) کښې ښخ دی. هغه دمجاهدت او پښتنو الی بیرغ چه دروښان په وخت کښې اوچت شوی و دعبدالقادر په مرگ ټیټ شو ، دیو قرن دمجاهدا تو هنگامه په دغه ورځ سړه شوه او دمغلو غوږ و به په آرام شول ، ددوی کورنی بیا هندته جلا وطن شوه ، وایی چه په پانی پت کښې مغکی ورکړل شوی ا فضل خان ختک لیکی چه اوس ۱۱۲۳ ﻫ سن دی چه هغه وطن ددوی په لاس کښې دی.

۱۷ دعبد القادر خور : هغه وخت چه مغلو احداد قلابند کړ ، عبد القادر وو تلی شو ، او خور ئې په قلا کښې پاته شوه ، دمغلو لښکر چه په قلعه ننووت دا په قلا کښې وه ، یوه لښکری ئې دنیولو قصد وکړ دې ځان خلاس کړی شو ، پړونی ئې په مخ واچاوه او ځان ئې له قلا نه کښته وغورځاوه او مړه شوه ، نه ئې غوښتل چه دنا ترمو دښمنانو لاس ته دې پاته شی ،

۲۰ صاحبداد ، الهام الله ، اسد الله : داد ری و اړه ور و نه دی ، دا لهدا دخدا من دجلال الدین نمسی او دروښان کړوسی کیږی ، الهام‌الله او اسدالله په هندکښې دباد شاد له طرفه او یو رتبوته رسیدلی دی : دولت یوازی صاحبداد یاد کړی دی او وایی : چه سخی سړی و .

۲۳ ـ خلوخان ، عبدالواحد ، عبدالرحیم (۲) : دا دری واړه دهادیداد ځامن او د جلال الدین نمسی دی ، دولت صرف دخلو خان او عبدا لوا حد نوم و نه اخستی دی (خلو خان عبد الو احد له هادیداده ـ ، دعبدا لواحد نیز دپا یست شوی ، خلوخان ځوانمرد یو گران بهاگوهرو)

۲۴ محمد زمان : دبیر داد ځوی د کمال الدین نمسی دی ، دولت وایی: محمد زمان صادق دبیر داد ځوی ـ کم دده له ښکاره خلاس د تیرا غرو

۲۷ ـ خدای داد ، حکیم خان ، رحمان داد : دولت دا دری نور ته هم یاد کړی دی لکه چه وایی: خدای داد خان حکیم خان و بخښه خدای دواړه ؟؟ رحمان داد سخی څر گند باندا غترو

---

(۱) د۱۳۱۷ کال د انیس په شمارو کښې دښاغلی خوگیانی مقالې .

(۲) دهندد مغلو تاریخ لیکی چه هادیداد د پرش ځامن لرل ، او عبدالرحیم ئې ډیره موده په هند کښې ماموریت دراود .

داسې ښکاري چه دادرې تنه یادالهد ادځامن دي او یا دهادیداد ـ په هرصورت په دې سلسله کښې داخل دي . دولت غالباً هغه کسان ذکر کړي دي چه دده په ژوندمره شوي دي .

۲۸ قادرداد : د محمد زمان ځوی دی ، په یوه شجره کښې ښود ل شوی دی نوراوروسته کسان ئې نه دي معلوم شوي .

## دروښان پیروان

په دې لړ کښې هم ډېرمهم کسان داخل دي ، چه ټولو دروښان مسلك چلولی دی اوده یادده داولادې په لاره سم تللي دي ، ډېر یکښې لیکونکي او د آثارو خاوندان هم دي ، خوځومره چه معلوم دي وروسته بیانیږي :

۱ـ ارزاني : دروښان یوفاضل ، یوه او شاعرملګری دی . ارزاني د پښتو ، فارسي ، عربي او هندي یوره عالم و . په قام خویشکی ځمند او یوزبردست ادیب ، شاعر او مؤلف دی . دروښان په مریدانو کښې داوی نوم اولوی شان ښښتن ګڼل کیږي دروېزه وایي . «چه دی یو تیز فهم او فصیح شاعرو ، په عربي ، فارسي ، هندي او پښتو کښې به ئې اشعار ویل» وایي چه دی د خیرالبیان په لیکلو کښې هم برخه لري . ارزاني یومستقل کتاب هم لیکلی دی چه (چار رساله = چارزبان) نومېده . ارزاني ټولو وروستنو شاعرانو لکه خوشحال ، رحمان ، دولت ، قاسم علي افریدي یاد کړي دي ، دولت ئې دمرزا په دله کښې شمیري ، له بده قسمته ددې زبردست پیاوړي پښتون ادیب د کلام مرغلري تراوسه زمونږ لاس ته نه دي رارسیدلي .

۲ـ مخلص : دمیان روښان مرید او خلیفه و ، نوم ئې علي محمد دی ، ددرویزه په قول دارزاني وررو . وروستنو شاعرانو لکه قاسم علي او نورو ذکر کړي دی ـ مرزاخان ئې دپاکې وینا او خوږ کلام خاوند بولي ، دولت دده تصوفي مقام ته داسې اشاره کوي :

| | |
|---|---|
| چه ئې بخت از لی یارو | پیر کامل ئې رهنمو نه‌ئو |
| عنایت پری تښتن وکړ | یوه په لوی علم لدن شو |

بلځای کښې ورته همه دان اودمرغلرو پیونکی وایي :

| | |
|---|---|
| شاه طبعانو ئې زده قدر | ښه کلام درعدن دی |
| همد ان مخلص دو لته | ددې دروپه سفتن دی |

دولت دده ډېری مرثیې ویلې دي ، لنډه داچه دروښان دسلسلې یو نومیالی متصوف شاعر دی دده اشعار هم لاس ته نه دي راغلي .

۳ـ ملاعمر : دارزاني دریم ورور او دروښان له پیروانو څخه دی ، دده د شعر او شاعرۍ په باب چاځه نه دي ویلي خوغالباً دده چه دی هم عالم ، فاضل اودقلم خاوند و . درویزه وایي چه یوه

ورځی زه دخواجه صدرا کوزی جماعت ته رغلم گورم چه امام ئې ملا عمر خویشکی ودرویزه ، دوی دري وارهوورونه دروېزان مریدان اوعقیدتمن گڼي .

٤ ـ ملادولت ممندزی: درویزه واڼي چه دی دخپل وطن یو لوی عابد او زاهد و، څو ورځی دمیا په صحبت کښي تیری کړی . اودهغه په طریقه کښي داخل شو ، دده په واسطه داشنغر تول خلق دمیان مریدان شول . پر ته له دوی څخه څینی نور خلق هم لکه ملاپاینده ، امته خان اکوزی دمیان مریدان اوعقیدتمندان وو ، او تولو په ټینگه دده پیروی کوله .

٥ ـ دولت : دروېزان دسلسلی یو مشهور شاعر ، او په قام نوحانی (١) دی ، دروېزان په مریدانو کښي یوڅی دده اشعار لیدل شوی دی ، دده دیوان دروېزان دتصوفي مسلك اوافکارو مظهر دی ، دروېزان تولې کورنۍ ته زیاته عقیده لری خودمرزا اساسی مرید معلومیږی وایی:

مرزا گنج راته خپل کوروښودغنی شوم　　　　بیهو ده منت به ولی دبل چاکرم

تر (١٠٦٦ هـ) پوری ئې ژوند یقینی دی . داهغه سنه ده چه ده پکښي دهادیداد مرگ ښودلی دی . دولت دپښتو یوقوی اوفصیح شاعر و ، دپېرو شاعرانو لکه خوشحال ، کاظم ، قاسم علی ، مرزا حنان دده نوم اخستی دی . دولت دتصوف گران مسایل دمرزانه هم په آسانه ژبه په پښتو شعر کښي بیان کړی دی ساده اوروان شعر لری ، دتصوف اووحدة الوجود په میدان کښي ئې د فکر نیلی زغلولی دی ، دده د شعر له باغه دمرزا او روښان دوحدت دباغ بوی راځیږی . اودهردول اشعار ئې لکه غزل ، قصیده ، رباعی ، قطعه اونورویلی دی . په اجتماعی اوقومی خوا کښي ئې دابیت دپېرقدر لری:

لهخپل قام سره دوستی نه کا کم اصل　　　　به واصل ته رجوع لری اصیل دی

دده داشعارو په نمونه کښي دایوڅو شعره لوستونکوته وړاندې کېږی :

| | |
|---|---|
| چه می دپېرده پیداوه دلبر می بیاموند | لکه تږی مستسقی کوثر می بیاموند |
| یوه نور راته ښکاره کړ مخ خو ئحایه | چه یوئحای می وبیز اند اکثر می بیاموند |
| سعادت را سره مل و له ازله | چه کامل واصل دحق رهبر می بیاموند |
| دړانده په دود حیران وم په تیاره کښي | تیر خورشید نر ماه تابان گوهر می بیاموند |
| مسافر په د پېر کلو نو وم بی سره | اوس هزار شکر کوم چه سر می بیاموند |
| ننداره د دواړو کونو په نفس کښي | هر سبا بیگا کوم بصر می بیاموند |

---

١) نوحانی پالوانی یوقوم دی ، چه دسوری وررور گڼل کېږی .

# د درویزه کورنی او مکتب

گومه دوهمه کورنی چه دیوولسمی پیړی دپښتوژبی په ژوند کښې حقداره گڼل کیږی هغه ددرویزه کورنی ده په دی کورنی کښې نسبتاً ډیر خلق لیکوونکی او نویسندگان تیر شوی دی اوله ښه مرغه دزیاتو کسانو د کلام نمونې هم لاس ته راغلی دی . د رو ښان د کورنی پشان ددرویزه کورنی هم دپښتو ژبی مبلغین اووا عظین گڼلای شو په خطابی او تحریری ترددوارو کښې پوره حق لری دې کورنی په پښتو کښې دینی مسئلو، عقاید واو نوروته ډیره توجه کړی ده، اوپه دی اعتبار دپښتودلیاك میدان ښه وسعت پیدا کړی دی، که څه هم دمحدودی موضوع څخه بهر قلم نه دی چلیدلی، چه لوی عامل ئی دمحیط اوما حول تأثیر اود مذهبی افکارو غلبه گڼل کیږی خو بیاهم ځومره خدمت او کارچه په دی کورنی کښې شوی دی، هغه دپښتو ادب په تاریخ کښې دپوره یادو نې حق لری .

## اخون درویزه

اخون درویزه د(۹۴۰ه) په حدودو دننگرهار یادپیښور په پښتو کښې دوجود ډگرته راووت داپه نامه عاجز اوفقیر هلك وروسته دلوی نوم اوعلم خښتن شو ددین ډیوه اود مذهب رڼا وبلل شوه دپښتو یومعتبر لیکوال اودیو ادبی مکتب مشر اومؤسس شو. دشعر اوادب په میدانکښې دحق خاوند، دعلم په ډگر کښې دفضیلت په نامه یادشو اوپه علمی اوادبی ځایو کښې ئی دعالم اوادیب نوم وگاټه داخون درویزه دپلار نوم گدای اودنیکه نوم ئی سعدی دی دی وایې چه زمانیکونه له بل ځایه ننگرهار ته راغلی دی شینزم نیکه ئی چه جنتی نومیده لغمان کښې اوسیده جیون دجنتی ځوی په مهمند ره کښې و، ورنیکه ئی (درغان) د شنوار ویه پا پین کښې ا ستوګنه کوله بیا شیخ سعدی دده نیکه، دیوسف زوسره پیښورته ولاړ کوم وخت چه ملك احمداو شیخ ملی تولو قومونو ته ځمکی ورکولی دی ئی هم په ویش کښې را ووست اودمند یز ویه قبیله کښې ئی برخه ور کړه درویزه وایی چه گدای بیاله منډیزونه جدا شو اودچغرزوخلقو ورله دلسو کسو برخه انعام ور کړه اوتر اوسه پوری دغلته اوسو ددی بیان څخه معلومیږی چه پخیله درویزه ژوند هم کښته په پیښو ر اویوسف زو تیر شوی دی خودی ځان ننگرهار ی گڼی او اولاده ئی هم په شیخ درویزه ننگرهاری یادوی ځکه چه ډیر وخت ئی نیکونه په ننگرهار کښې اوسیدلی دی. ددرویزه مورقراره دپاپین اودملك نازوخان لو روه ځکه دی ځانته پا پینی هم وایی؛

داخون درویزه دقوم په باب کښې څه داسی صریح بیان نشته خو سره دد ی هم د پښتنو په ملیت کښې داخل اوده ته مونږ یولوی پښتون اوبیاد پښتو ادیب وایو درویزه د(۱۰۹)

کاله ژوندنه پس دشاه‌جهان په‌وخت کښې په (۱۰۴۸ھ) کال مړشوی دی اود پېښورنه یو میل سویل ته په‌هزار خانه کښې درحمان بابا له‌قبرڅخه هورته ښخ دی.

مقام اوشخصیت: درویزه په پښتنو کښې دعام شهرت اوعام مقبولیت نوم کټلی دی او هرڅوك نې داخون درویزه بابا په‌نامه پیژنی دی یوعالم سړی ودلویو او مشهورو استاذانو څخه ئې لکه ملا مصراحمدیا پینی، ملا محمد زنګی او ملا سنجرپا پینی تحصیل کړی او علمی کتابونه لوستلی دی سربیره پرعلمیت په‌طریقت کښې هم لوی سړی دی دملازنګی په واسطه ئې دسید علی ښیری (پیربابا) څخه لاس نیوه‌وکړه اوبیاورو سته دهغه ماذون شو په زهد او ریاضت کښې تینګ سړی و عمرئې په امر معروف اوتبلیغ کښې تیر کړی دی خپله دسلوك وینا دشیخ علی خوازه بولی: دې‌فقیر چه‌دا بیان کړه‌سلوکه- سکه موندلی ئې‌دشیخ‌علی‌خوازه‌دی اخون درویزه یوصحیح مبلغ اوصحیح محتسب و په‌طریقت کښې مقتدا اوپه ادب کښې دحق خاوندی. دواعظ، خطیب، مؤلف، مصنف، شاعر اونثرلیکونکی په‌نومو ستایل کیږی بر سېره په‌دی ټولو خبرو درویزه دپښتو ندتاریخ په‌لیکلو کښې هم دیرحق لری ترکومی اندازی چه‌دپښتنو دحالاتو په‌تاریخ کښې څه‌موجود دی هغه‌دده دکوشش اوقلم له‌بر کته‌دی‌وروستنی پښتانه مورخین لکه افضل خان خټك دده څخه روایتونه کوی‌اوداحقیقتا دیوقوم دژوند دپاره لوی خدمت باله کیږی ددرویزه په شخصیت کښې دروښان مخالفت هم یو لوی شی په‌نظر راځی ددی دوو لویو کسانو دمذهبی اختلافونو اوبحث مباحثو په‌منځ کښې پښتو آثار اوتالیفات ډیر شوی او میدان ته راوتی دی احتمال‌لری چه‌د درویزه او روښان په‌مخالفت کښې‌دې‌دمغلو لاس هم داخل‌وی په‌هرصورت‌ددې خواوسره‌ئې‌مونږ په دې‌لیکنه کښې ډیر کارنه‌لرودوی‌یو هېډلاو کارئی.

ادبی‌خوا: دپښتو دادب په‌خوا کښې داخوندرویزه خدمت یو څرګند شی دی، دده دکوششونو اولیکنو په‌واسطه‌پښتو ښه‌ذخیره‌پیدا کړی‌ده کوم‌وخت‌چه درویزه ته‌په‌دې‌لار کښې قدم‌واخست، دده‌ټوله کورنۍ دده‌په‌قدم‌ولاړه، نورډیرخلق دده‌په‌شاګردانو کښې دې‌خدمت‌ته تیارشول اوپښتو دښولیکونکو خاونده شوه، یوه‌علمی کورنۍ ئې په‌خپل‌نامه‌پر ښوده، اودیو ادبی‌مکتب‌جوړوونکی‌شو. کوم‌اساس او کوم‌سبك چه‌ده‌روان کړی‌و، اولادې اوپیروانو ئې دهغه‌په‌چلولو کښې ښه‌کوششونه وکړل، درویزه دپښتو دحروفوپه‌اصلاح کښې‌هم لاس‌خوځولی اودمخزن په آخر کښې‌ئې دپښتومخصوص اوثقیل‌توری په‌ښه‌شان بیان کړی‌دی. درویزه‌دخپلی ژبی‌اهمیت په‌یو ښه‌صورت داسې‌بیان کړی‌دی، وایی: هرسړی‌دې‌ته محتاج‌دی چه‌شرعی احکام وپیژنی او ددین له‌ار کانوڅخه خبر شی مګر په‌خپله‌ژبه - په‌هروطن کښې خلق دبلی ژبی دیو لوی‌عالم‌څخه دخپلی‌ژبی دیوډېروکی عالم‌سره زیاته‌مینه اومحبت‌لری، ځکه‌چه‌دوی‌ئې‌په خپله ژبه

کښې له هرځه څخه خبروي دديمهم اساس اومسلم حقيقت نوروسته چه ديو قوم دترقيو اوپوهو بنسټ دى وايى: (نولدي کبله زه هم غو رم چه دينى اومذهبى مسايل اوعقائد په پښتو کښې بيان کړم) معلوميږي چه دده دپښتو آثارو دليکلو يو سبب هم دا خبره، يعنى په خپله ژبه دخپل قوم پوهول دى داخون درويزه اودده دکورنۍ دادبي اودينى خدمتونو اثر په ټولو خلقو پروت دى، په دې باره کښې دځينوليکوالو اوشاعرانو اظهارات دادي: اخون قاسم يادينى دپښتو يو مشهور سړى داسې وايى: (اخونان شهيدان واړه خداى پيدا کړل چراغونه - په پښتو ئى دين بيان کړ) نورمحمد غلجي په نافع المسلمين کښې وايى:

اخون درويزه ستن دده دين په پښتو کښې ٭ دچراغ په شان ئې روښان دين که په دا افغانى لسان

دالپورى حافظ داسې اظهار کوي:

پښتنو ته ددين لار اخون رښا کړه ٭ مرد وزن دې په خپل ځان بار دمنت زدى

پروفيسر دورن(۱)روسي اخون درويزه دپښتو ژبې لمړى مصنف، ليکونکى اود خوشحالخان همقطار کنى اودپښتو ژبې دادب په ژوندانه کښې ئى اوى رکن بولى. په دې دول نور هم ډېر اظهارات پيدا کيږي .

تاليفات: داخون درويزه تاليفات چه نومونه ئې معلوم دى دادى ۱- تذکرة الابرار والاشرار يو تاريخي کتاب او په فارسې دى دپښتنو دتاريخ، انسابو اوحالاتو بيان کوى او په (۱۰۲۱ هـ) کښې ليکل شوى دى. ۲- ارشاد الطالبين دا کتاب ماندى ليدلى، وايي چه په پښتو دى ځينې لا وايى چه دده نه دى هسې دده په نامه مشهور شوى دى . ۳- مخزن الاسلام: دارمستتر(۲) وايي چه اخون درويزه (۵۰) کتابونه جوړ کړى دى خو مونږ ته ئې دنورو په اومعلومات نشته .

مخزن الاسلام: زمونږ مطلب هم په دې کتاب کښې دى، دا ددرويزه ترټولو مشهور اومعروف کتاب دى، ټول په پښتو او په «مخزن درويزه» او «مخزن پښتو» هم يادېږي. دا کتاب دشرعي اوعقيدوي مسئلو مجموعه ده، ددرويزه په قول دخيرالبيان په مقابل کښې ليکل شوى دى. دى وايى (شايسته مخزن مى وکيښ پر په درو په گوهرو) مخزن له درويزه څخه وروسته اولئل دده ځوى کريمداد اوبيا بل ځل دکريمداد نمسى مصطفى محمد دکتاب په شکل ټول کړى دى. دمخزن په وروستنو مجموعو کښې دده دکورنۍ اوشاګردانو دډېرو کسانو اشعار پيدا کيږي. مخزن بلاشبه ددرويزگانو کنندى هر يو چه راغلى دى بو ميوه ئې توته ئې وربورى نښلولې ده . دمخزن دليکلو سبك دخيرالبيان طرز ته ورته دى، ددې کورنۍ ټولو کسانو په همدې سبك ليکنې کړى دى . دمخزن عبارات تر يوې اندازې آسان دى خو ځينې عربى، عرفانى اوتصوفى کلمات پکښې زيات استعماليږي. مخزن په مذهبى اوادبي ځايو کښې زيات شهرت لري، شومره چه خيرالبيان ورك دى، هغومره دمخزن قلمى نسخې ډېرى پيدا کيږي. دمخزن يوه نسخه باندې دکوهات حاجى بهادر

(۱) (۲) تاريخچهٔ شعر پښتو دحبيبي

دمفتاح الدقایق په نامه یوه حاشیه لیکلې ده او له دغې حاشیې سره په ډیلي کښې چاپ شوې دی.
خوشحال خان هم دمخزن شهرت یاد کړی دی . لنډه دا چه مخزن دپښتو یو مشهور او غنیمت
کتاب دی .

مخزن شعر دی که نثر : لکه چه دخیر البیان په بحث کښې وویل شوه ، دهغه وخت په اصطلاح
او داخون درویزه په خپل اظهار مخزن هم شعر دی وایي ( چه بایزید به شعر ونه جوړول ،
نو ماهم دده پر خلاف شعر شروع کړ ، تردی چه په شعر کښې ورنه مخکښې شوم ) بل ځای وایي:
چه دپښتو په اشعارو کښې شاعرانو چندانې دقافیو دموافقت ، فصاحت او په کلمو اوحرو فو کښې
دمطابقت خیال نه ساته ، ځکه مو اشعار دادول لیدل شي نو خرگنده شوه چه دی مخزن ته شعر وایي
ددی کورنۍ نور کسان هم دمخزن په سبک کلام اشعار بولي ، دا دهغه وخت ددیني او مذهبي بیانو
دپاره دشعر یو مخصوص طرز دی چه دیو قسم آزاد شعر رنگ لري . بله دا خبره هم ده چه دهغه وخت
نثر ځانله او بیل طرز لري لکه دکر یمداد دا لاندی نثر چه د تذکرة الابرار په مقدمه کښې
راغلی دی:(ای خدایه ستا دعام کرم ځنې اوستا دقدیم لطف ځنې امیدارم چه دلته دسهوی او
د بېوېيد واثر پری ننزدی ، او په نظر دمعززو او اشر فو علماو او پرهیز گارو او غوره شوو عارفانو
ئې قبول کړې چه په صحت ددې کتاب او په حفاظت دایمان زمو نبز کښې دعاو کړی - ای خدایه !
ددوی دعا زمونبز په حق کښې قبولې کړې او زمونبز په خطا گانو قلم د عفو راکاږی
او مونبز په حقه لار برابر کړې ، مونبز په خپل قصور دعلم او ادراك او په کم والي د استعداد اعتراف لرو)
نو په دې اعتبار هم باید مخزن شعرو باله شي هو! دشعر په قانون مخزن شعر دی مگر نیمگړی -
دقافیو مراعات کوي وزن هم اکثره لري مگر دمسرو دلنډوالي او اوږدوالي پروانه ساتي نو ځکه
یو کامل شعر نه بلل کیږی خوشحال خان خو ئې غالبا شعر نه بولي .

مخزن مې داخون چه تمامي به نظر کښېوت په ده کښې نه عروض شته نه ئې بحر ما موندلی

دمخزن او خیرالبیان څه فرق دا دی چه دمخزن عبارات زیات موزون او دخیر البیان هغه
یو ائي مقفی او اکثر بې وزنه وي .

## د درویزه اولاده

ددرویزه د کورنی دزیاتو اشخا صو د کلام نمونې له مخزن څخه لاس ته راغلې دی البته ځینې
داسې کسان هم پکښې شته چه مونبز ئې په کلام او اثارو علم نه لرو خو دیوې ادبي کورنۍ په حیث
دتولو ذکر ضرور او لازم لیدل کیږی .

(۱) عبدالکریم :- داخون درویزه زوی او پدی خا ندان کښې یو مشهور ، عالم او فاضل سړی دی
بر سیره پر روحاني اودکرا مت او ولایت خاوندهم و په عرفان ، سلوك ، او طریقت کښې لوی لاس
لری دعارف او سالك مقام داسې ښیی:

نا قص تښتي له اغيا ره　　　او عارف له خپله ځانه تښتيدلی

هر سا لك له خپله سو زه خه وييږي　　　چه بې‌سوزه گفتار نه دی‌چا ليدلی

په‌يو ځای کښې ځان دچشتيانو مريد گڼي :

کريمداد مريد دی د چشتيانو　　　د چشتيانو پيا له هسی ده رندانه

دی‌په کريمداد مشهورو ددرويزه زيات کتا بونه ده جمع کړی او د کتاب په شکل غونه کړی دی ـ په‌مخزن کښې له‌خپله ځانه هم‌زياته برخه لری زيات خلق ورته دپښتو محقق وايی مصطفی‌محمدئی په امام الدين عبدالکريم شهيدسره‌يادوی‌ده دپلارپه سبك کښې خه اصلا حات هم کړيدی‌دهغه شعرنثرته‌نژ دی، و، او د ده کلام د کامل عر وضی شعر رنگ‌ته نژدی،دی شاعری يودرياب‌بولی:

شاعری مثال بحر که يوهيږي　　　کم شاعر ئې له گردابه را وتلی

کريمدادخپله‌وينا دپلاررحم‌ته منسو بوی :

کريمداد چه خه‌و ييږی　　　رحم‌شوی دخپل پلار دايم‌پرده‌دی

د اشعارو زياته برخه ئې توحيد، سلوك، فقه‌او عقايدوی په عشقی خوا کښې هم ځينی اشعار لری لکه دا :

پرخپل‌جانان‌هسی عاشق يم　　　چه‌پر هر خه می يادييږی

په‌هر لو ری چه مخ کړ م　　　دده مخ را جلوه کيږی

يارمی زلفی‌شو شب رنگه　　　چه‌می تل پرمخ لگيږی

خپل طا لب می دی‌ويشتلی　　　خوز ئې‌دم‌پدم زيا تيږی

کريمداد په (۱۰۷۲ه) کښې‌وفات شوی‌دی او (۱) دسوات دنکبيخيلوپه کانجو نومی کلی کښې‌ښخ اوپه کريمداد او شهيد بابا مشهور دی دالپو ری حافظ دده علم،شهادت ، اومدفن‌داسی بيانوی :

يو عالم‌وی بل‌شهيدشوی　　　عجيبه‌درفريد شوی
د کانجو ميا کريمداده　　　دانيو لی لمن ستاده

د کريمداد تاليفات دادی:ـ ۱. تحفه الخانی (۲) په‌پښتو ترجمه‌ده شايدکوم عربی دينی کتاب وي‌دا کتاب په‌۱۳۰۲ کال په‌ډيلی کښې‌چاپ شوی‌دی ۲ـفقه کر يمداد فقهی مسئلو يو کتاب‌دی چه‌ددې‌په‌نامه مشهوردی يوه‌قلمی نسخه‌ما ليدلی ده۳ـ په‌مخزن کښې هم‌يوه برخه لری نور کتابونه‌ئې راته‌معلو م‌نه‌دی .

(۲)خالق داد:ـ داخون درويزه‌زوی‌دی (۳)يو کتاب‌ئې د(شرايط واحکام‌ايمان) په‌نامه

---

(۱)دالپوری‌دحافظ‌ديوان‌مقدمه (۲)(۳)د۱۲۱۸ په‌سالنا مه کښې دبناغلی زمريالی د کتابوله فهرست څخه .

په پښتو نظم کړی دی دا کتاب زما له نظره نه دی تیر شوی وایی چه د لندن په موزیم کښې شته دخالق دادنورخه معلومات په لاس نشته.

(۳) عبدالله:- داخون درویزه زوی او دعبدالحلیم پلار دی دشاعری ذکر ئې چا نه دی کړی او نه ئې په مخزن کښې دکلام نمونه شته یوا ځې دعبدالحلیم له اظهاره معلومیږی چه دده پلار او ددرویزه ځوی دی .

(٤) نور محمد: دکریمداد ځوی او داخون نمسی دی دده کلام او شاعری په باب کښې هم چا څه نه دی ویلی صرف مصطفی محمد په مخزن کښې دومره وایی چه زما پلار او دکریمداد ځوی دی .

ه : عبدالحلیم: دپورته عبدالله زوی او داخون بابا نمسی دی د مخزن په نسخو کښې دده اشعار لیدل شوی دی خو لنډ دی دمخزن په ملحقاتو کښې سهیم دی، اشعار ئې د عروض والا وسبک ته نژدی دی دا شعر ئې عرفانی او تصوفی رنګ لری :

| | |
|---|---|
| شپې د هر غشی روغ کړی | عاشقان ئې دی نوم وړی |
| دوی و یشتلی پر غونه زړه دی | پر میدان ورته ور غړی |
| واوی کمان ته ئې را کاږی | پر کړ دن ئې باسی پړی |
| لکه نیله مار چه خوای وخوری | نه پرې دم کار کانه جړی |
| د نا سوت تر مقام تیر شی | دلا هوت پر مقام تو ډی |
| عاشقان دایم په کار دی | د وصلت تار ونه غړی |
| د وحدت له شنه دریا به | شنه در ونه ئې راوړی |
| غافلان ویده په خوب وی | په شپه پروت وی لکه مړی |

٦ :- مصطفی محمد : دکریمداد نمسی او داخون درویزه کړوسی دی، دی هم دمخزن په ملحقاتو کښې برخه لری، دمخزن جامع او دوهم ټول ئې په (۱۱۱۲) کښې ټول کړی دی. (۱) دخپلو نیکونو په سبک ئې اشعار ویلی دی، دی دمخزن په یو ځای کښې وایی : هر کله چه دبابا امام الدین عبدالکریم شهید دحروف تهجی بیان معلوم شوی نو نو هغه مصطفی محمد په خپل فکر موافق دشرع بیان کړ. دمصطفی محمد یو دوه بیتونه چه له مخزنه اخستل شوی دی دادی :

| | |
|---|---|
| الا غوندی تر غاړه | یکانه محبوب و غواړه |
| یکانه محبوب به مو مې | که نه و شلیږی له واړه |

(۱) مصطفی محمد وایی چه ددې ترتیب څخه ۱۱۱۲ هجری د محرم په ۱۲ دا سلام پور په دننه جمات دبابا جیو په خلوت خانه کښې فارغ شو هغه بو مېنو چه دبابا جیو څخه ئې څوک مطلب دی ؟ دده په نیکونو کښې یو جیون نامی شته شاید هغه به یادوی او اخون چالاک څخه هم په اخون جیو مشهور دی .

۷ـ ملاصفر : ددرویزه ورورد ی، یومات گوډ غوندې شعرئې د مخزن په آ خر کښې راغلی دی درویزه وایي یو ورځ مې دروښان دیوه خلیفه سره بحث کاوه ، د بحث په منځ کښې ئې دپښتو یو بیت ووایه چه د عالمانو بد ه یکښې وه په دې وخت کښې زما ورور ملا ا صفر د هغه په ځواب کښې څه بیتونه وویل ، یوځوئې دادی :

واروی ء یارانو نبی ناست په جماعت و
جبرئیل و پری را غلی له ښه خدا یه پرې رحمت و
واروی عا لمه عالمان د ملك د یوه دی
عام وخاص بی جلب نیسی ، دوی ناست دپاك رسول په میراثه دی
عالمان گوره سوا ره د رو غی لارې
دوی سواره دشریعت دی ،وسکه هر گمراه نه رسی دشریعت په چاری

۸ ـ الله داد : داسړی قاسم علی د کریمداد اودرویزه سره یوځای ذکر کړی دی( الله داد که کریمداد که درویزه و) نو کیدی شی چه داخون درویزه له کوله وی،څه رنگه چه د ه دشاعرانو په دله کښې راوړی دی نومعلومیږی چه شاعر هم و . دالپوری حافظ د کریمداد او درویزه د ذکرڅخه وروسته دده نوم داسی اخلی : ای چشتی میا الله دا ده — ما نیو لې لمن ستا ده عقل ته خودا بالکل پرېوځی چه دی د درویزه په اولاد کښې داخل دی .

## ددرویزه شاگردان اوپیروان

۱ ـ عبدالسلام : د مخزن په یوه نسخه کښې ئې د کلام نمونه لید ل شوې ده ؛ ددرویزه یادده ناولاد هممصر معلومیږی، دا احتمال هم شته چه ددرویزه له کورنۍ څخه وی ، مگر په یقین نه ده معلومه ـ شعرئې عروضی خواته نږدې دی، د کریمداد دځینوا شعاروسره ادځ لگوی .

دالاندی ابیات ئې د ۱۳۱۹ په سالنامه کښې دښاغلی حبیبی له مقالې څخه را اخلو :
ستا په تن کښې داپنځه خیزه گوهردی ته ئې وساته عا قله

هر چه دا گوهر خوندی، کا دنبی لارئې وسا تله
اولگو هر ایمان دی ، دایمان زوال د روغ دی
لکه تو لچه و زی کاذی ، په ناگاه ئې زلی ووهی پر بله
دو یم گوهر ئې عقل بیا دعقل زوال قهر
لکه ما نۍ کا تیاره او ر پرې یو ری کا په خپله
دریم گوهر ئې علم بیا د علم زوال کبر
لکه نادان چه پر باغ گډ شی اومه خربوزه پری کاندې له گله

خلورم گو هرئی سخاوت دی بیا زوال ئې پښېمانی ده
هرچه پښېمانی پرسخاوت کا، دگوهروخزانه ئې شیاطینو ولوټله
پنځم گو هرئې صبر بیا د صبر زوال حرص دی
هر چه حرص پر ئې غلبه شی غیر لار ئې و نیوله
فقیر چه دابیان پښتو کړ هر مؤمن دې په یاد کا
هرچه داواړه پرځای کا ، دگو هرو خزانه ئې وساتله

۲ـ عمر خان : دمخزن په یوه نسخه کښې ئې نوم راغلی دی؛ داسی معلومیږی چه د درویزه له شاګردانو اوپیروانو څخه دی ، په خیله درویزه په تذکرةالابرار کښې وائی چه ملا عمر شلمانی زما شاګردو ؛ نو احتمال لری چه هم دا عمر خان به یا دوی .

۳ـ میرخان: دده نوم او کلام هم دمخزن په یوه نسخه کښې زما تر سترګو شوی دی، دی د کریمداد شاګرد د معلومیږی ، مرزا حنان دمرزا او دولت په ډله کښې د سلوك شاعر بللی دی ؛
یو مرزا ، میرخان دولت دعلم کان وو    دسلوك شعر ئې کړی دی افضل

٤ـ شیرمحمد : ددې سری اشعار د مخزن دیوې نسخې په آخر کښې راغلی دی ، داسې ښکاری چه دی هم داخون درویزه داو لادې په شاګردانو کښې داخل دی ـ دی ځانته کاتب وائی لکه چه دمخزن کومه نسخه ئې لیکلی ده ـ داشیرمحمد په اول جلد پښتانه شعرا کښې ذکرشوی او ننګرهاری ئې بللی دی ، دا احتمال هم شته چه داخون درویزه له کورنۍ څخه وی ، دا بیتونه دده دی :

| | |
|---|---|
| شیرمحمده دا منګیر د علم اوسه | چه داعلم ستار هېردی مقرر |
| څوژوندی ئې ته طالب دعلم او سه | په طلب د علم ګرځه ور په ور |
| هرچه کاتب په نیکه دعا یاد کا | خدای دی پرې آسان کاد قیامت عظیم سفر |

۵ـ جان محمد : د جان محمد یو شعر هم د مخزن په آخر کښې لیکل شوی دی ، نه ده معلومه چه داخون درویزه سره دخپلوی څه ارتباط لری که یه؟ ښایی چه معتقد او شاګرد ئې وی ، دی هم په اول جلد پښتانه شعرا کښې ذکردی . داو د درویزه دمکتب او کورنۍ بیان !!

## دخوشحال خټك کورنۍ او مکتب

دا کورنۍ دپښتو دادب ، شعر او شاعرۍ دریمه مشهوره کورنۍ ده ، ددې کورنۍ ادبی نهضت له (۱۰۵۰ هـ) څخه تر (۱۲۰۰ هـ) پورې په ډېر شور او زور چلېدلی دی . په دې موده کښې دپښتو ژبې دپاره هر ډول خدمتونه شوی او آثار لیکل شوی دی ، نثر او نظم دواړه اوږه په اوږه پرمخ تللی ، اواوی لوی نو یسند کان ، ادیبان او شاعران

میدان ته راوتلی دی اودپښتو دادب دنیا څېره رنګینه او ښائسته شوی ده داتول ادبی نهضت دې ګورنۍ ته منسوب دی . دنثر او نظم هغه نیمګړی نیمګله سبك چه پخوا جاری و پهدې کورنۍ کښې اصلاح ومرنده ، نثر خوږ والی پیدا کړ ، دمحاورې شکل ته رانز دې شو ، خوسره ددې دنورو ژبو اهرنګه ښیښی‌ونه ووت ـ دافکارو اومضامینو له حیثه هم دپښتو دادب دایره ارته شوه ، دروښان اودرویزه په وخت کښې لاد نظم لیکلو باز ارګ دومره ګرم نه و ، هرڅه چه وو په‌مذهبی اودینی ماحول کښې محدودوو ، مګر په‌دې‌وخت کښې دادب اوشاعری بازار ښه‌تودشو عمومی شور اوهنګامه پیداشوه، په‌شعر کښې دقادر، هجری او کاظم‌غوندی خوانان اوپه‌نثر کښې دافضل خان اوقادرپشان پهلوانان میدان ته‌راووتل ، لنډه داچه‌په‌دې کورنۍ کښې دپښتو ادب نظم ا و نثر د خپل کمال لوړی پوړی‌ ته ور سیدل ، او د ادب ستنی ښې کلکې اومحکمې شوې . په دې‌لحاظ دا عصر دپښتو ادب یو روښان عصر او دتحول اوتجدد نوې دوره بلل کیږی ، اوخوشحال ددې دورې دمؤسس اوپلار په‌نامه یاد وو .

## خوشحال خټك

یوزرودوه‌و یشت کاله له‌هجرت‌ه‌تیروو؛ چه‌دخټکو په ښه کښې دشهبازخان کره یوخوشحال زوی پیداشو ، ورو کی‌و ، لوی شو په‌خبرواوچغار راغی ، دخټکو په‌باغونو کښې وګرځېد ، دتوتیانو یولوی سیل‌وریسی شو دوطن تول‌ښونیه اودروه غرونه ئې تر وزرو لاندې کړل ـ په‌هرښه اوهرګلزار کښې ئې دخوازه چغار خوندونه پرېښودل ـ د باغ مراوی او مخ پټی غوټی ورته‌وغوړېدې ، مسکی شوې، په‌خنداشوې ، په‌تازه نغمواوتازه ناروئې بلبلی‌په مستی راوستې ـ دروح خوشحالی زیاته شوه ــ څه‌وشو ؟؟ دخوشحال دشا عری وزمه د غرند و اومړاوبوتو ، ګلانو اوپانو دنوازش‌دپاره‌پهلګېدوشوه ـ دطبیعت مارغه‌ئې وزرونه خواره‌کړل ، والوت ، دتیرا په‌لوړ وغرنو وګرځېد ، په‌لوړو نښترو‌کښېنا ست ، جګو څو کوته و خو ت ، په‌شنو ښاخونو کښېته پورته‌شو ـ په‌دې وخت کښې ورته دهغه ځای بازانو او کوتر و دروښان پیغام چه‌دعبدالقادر په‌لاس‌تر‌دغه وخته‌رارسېدلی و، ورساوه،میدان ته‌راووت‌دپښتو اوپښتنوالی ، دآزادی اومړانې جنډې ئې ورپولې ـ په کلك اوټینګ عزم دملت اوقوم دلوی‌ اوو حدت دپاره له‌سره‌تېرشو ، دخپل لوی مقصد په‌لار کښې‌په‌هیڅ ایسارنشو ،دپښتنوملی‌مشر اوقایدشو، له‌دښمنانوئې خپل کسات واخست ، دپښتون دآزاد ژوند اوخپلوا کی دپاره ئې له وینو سره اوبی و کړی ، خپل همت ئې دزمری په خو له کښې له لاسه ور نکړ ـ دو طن په مینه کښې له‌هرڅه‌تېرشو ، له‌سره ئې ودانګل ، دوطن د مینی په نارو ئې ویده زړو نه راویښ کړ ل ـ دملت ساتندوی ، دپښتنو الی ګټند وی ، دپردو دښمن، او د پښتو ژبی یو نو میا لی اد یب

او ننګیالی پښتون معرفی شو. دا جتماع او اخلاقو په میدان کښې هم وزغاست دجا مه ي اومحیط سره لګیا شو د پښتنوالی درانه خو یونه اوسپېڅلی اخلاق ئې بیان کړل دژوندانه دستور العمل ئې وښود دا جتماعی حیات په مزه ئې خلق پوه کړل پښتانه ئې دقوم اوملت خدمت ته راوبلل۔ دتصوف اوسلوك علم اودنیا به په دنیا کښې هم وا لوت، دغه جذبات ئې ښکاره کړل اودجهان او دآسمان په ننداره سرشو .

| | |
|---|---|
| راشه وغږ وه ستر ګی | د جهان ننداره ګوره |
| چه ښایست لری په ستورو | دآسمان ننداره ګوره |

خوشحال هیڅ قسم مضمون پری نښود حقیقت ئې له مجازه سره ونښلاوه ـ عشقی، بزمی، اخلاقی اجتماعی، وطنی، ملی، فلسفی، تصوفی، رزمی، حماسی، فکاهی اونور قسم قسم مضامین ئې د شعر په جامه کښې ونغښتل دهر چا ذوق دپاره ئې په خپل باغ کښې رنګارنګ ګلو نه وکرل دا ښکار په لاسو ئې دشعرناوی ښایسته کړه ساده او اسان شعر ئې ووی په ساده تخیل ئې شعر خو ندور کړ دافکارو مرغلری ئې دشعر په مزی کښې وپېیلی دزړه دکترو ترجمانی ئې و کړه، دخبرو ملك ئې فتحه کړ ، اودپښتو ادب استاذ شو (۱) .

په فصاحت کښې حسان، په رزم کښې فردوسی، په اخلاقو کښې سعدی، په فلسفه کښې خیام په عشق اوتصوف کښې حافظ، په عشرت کښې بونواس، دقدرت دمناظرو په بیا ن کښې استاد وبلل شو اودفطرت مصور اودجمال کښیده ګر شو. دده له شعره دپښتو ژبه په آب وتاب شوه دغره خټك ئې ټول شاعران کړل دبلبلو دنارو دپاره ئې دوینا اوخبرو باغ جوړ کړ لکه چه وا ئی :

| | |
|---|---|
| ماخوشحال چه په پښتو شعر بیان کړ | د پښتو ژبه باوس په آب وتاب شی |
| دخوشحال سره که کښېنی یوخو کاله | دادغره خټك به واړه شاعران شی |
| همیشه به پری ناری وی د بلبلو | دا چه ساز کړ ن خوشحال په ویل باغ |
| په پارسی ژبه که نور ترما بهتر وی | په پښتو ژبه می مه غوا ړه مثال |

لنډه دا چه خوشحال خټك دپښتو ادب یو ډېرلوی ادیب، تکړه شاعر، دملیت پتنګ، دپښتنوالی لېوال ، دقوم اوملت خوږمن ، یوزبردست مفکر اوسیاس ومنل شو. دخپلو ، پردو ، لویو ، وړو ، په ذهنو کښې دده دشهرت جلوه ښکاره شوه اودیورپ خلقو ورته دیو ملی، قومی لوی شاعرخطاب ور کړ. پرته له شعره دپښتو په نثر کښې هم دلوی لاس خاوند او د پښتو دنثر دنوی دور مؤسس شو دنثر ډېر آثار ئې ولیکل دیوقوی نثر لیکونکی ، یو مورخ ، لوی عالم، مشهور مؤلف په نوم وستایل شو دغه وجه ده چه خوشحال د پښتو د ادب اوملیت په تاریخ کښې دیو ډېر لوړ مقام خښتن اوجګ پاڅ خاوند بلل کیږی .

---

(۱) خان استاد دتمام ر وه دی (کاظم)

تالیفات : ده په پښتو ژبه ډېر آثار لیکلي دي د اروپا مستشرقین دی دغو کتابونو خاوندان ګڼي مستر راورټي دده آثار (۲۵۰) شمېري مګر دا بده شامته چه دغه زیات آثار اوس ورک دي خه چه معلوم دي له اول توك پښتانه شعرا څخه دلته بښول کیږي ۱- د پښتو اشعارو دیوان چه تقریباً څلوېښت زره بیته کیږي ۲- د پښتنو تاریخ مګر نه پیدا کیږي ۳- عیاردانش د انوار سهیلي پښتو ترجمه ده راورټي لیدلی دی ۴- ددیني متفرقو مضمونو یو کوچنی کتاب دی دا هم راورټي لیدلی دی. ۵- دیاد داشتونو کتاب افضل خان په خپل کتاب کښې ورته حواله کوی ۶- فرخنامه د توري او قلم جګړه ده ۷- فضل نامه، په شرعی مسایلو کښې یو نظم دی ۸- ریاض المحبة ، بادري هیوز انګریز لیدلی دی ۹- بازنامه ، د ښکار بحث دی ۱۰- هدایه له عربي څخه په پښتو ترجمه ده ۱۱ آینه له عربی د مذهبی بحثونو ترجمه ده ۱۲- دستور نامه ۱۳- صحت البدن ۱٤- زنجیری ، د راورټی په قول د خوشحال خان یو قسم مختصر نویسی ده ، چه یوازی دده کورنی پری پوهېده.

عیاردانش: د خوشحال د نثر په کتابونو کښې یو ځنی ددی کتاب څه جملی او عبارات لیدل شوی دی تول مونه دی لیدلی نو ځکه ئی په دتر پوره تبصره نشو کولی ، ددې کتاب د نثر په ډي لاندې توګه کښې ځینی فارسي جملې او تر کیبونه ابدال کیږي ، د عربی او فارسی الفاظو استعمال هم پکښې شته، په دی لحاظ د فارسی رنګ پکښې پروت ښکاری مثلاً (قول چه دی له ماسره کړی و اوس دې رضا ده چه ما ئې کړی ، زه یو شیدم چه په دی زمانه وفا هغه دار وده چه په د کسان کښې د دعطاررو زګار موندنشی) سره ددی هم عبارت ئې آسان او روان دی ، د زیات تفصیل د پاره د ۱۳۲۰ په سالنامه کښې زما د پښتو د نثر مقاله کتلای شی.

## د خوشحال اولاده او کورنی

په دی کورنی کښې (۱) ډېر شاعران ، ادیبان او د قلم خاوندان شته ، ځینی کسان ئې په پښتانه شعرا کښې راغلی دی ، او د ځینو اشعار او آثار نه دی معلوم شوی ، دلته اوس مونږ په لنډه دول د هرچا دشان ونه بیان کوو ، او کوم چه شاعران نه دی د هغوی به بیا په آخر کښې یو ځای نومونه وښیو خو د کومو کسانو د اشعارو نمونې چه په پښتانه شعرا کښې راغلی دي ، هغه دلته بیا نه تکراریږی ، یوازی د هغه چا اشعار چه نوی پیدا شوی دی راوړل کیږی :

۱- اشرف خان هجری : د خوشحال خان زوی دی ، پس له پلاره د خټکو مشر او خان شو د پښتو ژبی یو خوږ ژبی او فصیح بیان شاعر دی ، د شعر یو دیوان لری ، پخوا چاپ شوی دی خو اوس نه پیدا کیږی . د اشرف خان د شعر د طبیعت زور هله ښکاره شو چه د اورنګ بندی یو تللی شو - خپل وطن او خپله خاوره ډېر د خوږ زده په دی ارمان او جدایی کښې چه دده له خولی کوم اشعار وتلی دی هغه ډېر دردمن ، ویرجن او مؤثر احساسات دی . وایی :

---

(۱) راورټی وایی چه ددې کورنی ښځې هم شاعرانې وې ، لکه چه د اشرف خان مور یوه مشهوره شاعره وه . ( د خوشحال د دیوان مقدمه د قندهار چاپ )

ما هاله دځان ماتم وکړ په وینو چه اتك وته می شاکړه په ژړا شوم

هجری دخوشحال په ادبی مکتب کښې دلوړمقام خښتن دی، په لمړی درجه کښې دودر پدو حق لری ، څه اشعار چه ئې لیدل شوی دی هغه په عشقی ، اخلاقی اووطنی خوا کښې دی - دا یو خو بیته ئې اې یوه پخوانی چاپی کتابه را اخلو ، دسپین زیرتوب څه ښه تصویر دی ؟ ؟

داروا ح د کوچ نیلی په زړه کښې زین شول چه په زنه می وښته دشباب سپین شول
د ځوانی بهار چه ولیښ له بدنه دپیری په خزان تور وښته زرین شول
هسی وینی می غم تویی کړی له ستر گو چه می نمری دصورت همه رنگین شول

۲ـ عبدالقادر: دخوشحال ځوی اویو نومیالی ادیب دی ، په سلوك اوتصوف کښې لوی لاسراری، دخپلی کورنی یوروښان ستوری دی پس له خوشحال خان څخه دی دپښتو ادب دوهم پهلوان او په نظم او نثر دواړو کښې غښتلی دی. دېر تالیفات لری، دخوشحال په ادبی مکتب کښې اوله درجه سړی دی، رضوانی وایی چه دی یو شیرین بیان ، اونکته سنج شاعردی، دپښتو په خدمت کښې هم لمړی درجه حقدار گڼل کیږی ، عشقی ، تصوفی ، اخلاقی او اجتماعی مضامین ئې ویلی دی خو په شعر کښې ئې دتصوف رنگ غالب دی . شعر ئې دساده والی ، روانی اوآسانتیا په گانه ښایسته دی ، په ساده طرز کښې خوږ کلام لری ، خپل اشعار دزړه وینی بولی :

رنگینه شعرمی مه گڼه ا لفا ظ داروان زما له زړه دوینو روددی

عبدالقادر تر (۱۱۱٤ ه) پوری ژوندی و .

تا لیفات: راورتی انگریز وایی چه عبدالقادر د (٦٠) کتابونو مولف دی، مگرمونږ ته ئې دالاندی کتابونه معلوم شوی دی: ۱ـ داشعارو یو دیوان ۲ـ گلدسته دگلستان پښتو ترجمه ده ۳ـ نصیحت نامه یوه خوږه مثنوی ده ٤ـ خلوبښت حدیثه ، نظم دی ۵ـ آدم اودرخانۍ مشهوره قصه ده ٦ـ یوسف زلیخا ، دا کتاب ئې په (۱۱۱۲ ه) کال کښې نظم کړی دی، قلمی نسخی ئې پیدا کیږی یوه نسخه ئې دکابل په موزیم کښې شته ، (٤٢٠) پانی ده او په ۱۲۲۰ ه کال دامین الله خان مهمند دکشمیر د حکمران په وخت کښې د ملاولی محمد په خط لیکل شوی ده. ۷ ـ حدیقۀ ختك دا کتاب ئې د« پټی خزانی » په واسطه پیژنو هلته ئې نوم راغلی دی، شاید کوم تصوفی کتاب وی .

گلدسته : دعبدالقادر دنثر په کتابونو کښې صرف دایو کتاب مونږ لیدلی دی، ددی کتاب نثر دخپل وخت ښه او بهتر نثر دی عبارات ئې صاف اوساده دی، مقصد ئې واضح او څرگند دی، تر کیبونه ئې پښتو محاوری ته نږدې دی مگر سره ددې هم فا رسی رنگ پکښې معلومیږی .

۳ـ صدر خان : دخوشحال ځوی، دپښتو ژبی شاعراو دښې قریحی خاوند دی.داشعارو

یو دیوان ئې پادری هیوز لیدلی دی او اقتباس ئې هم ځنې کړی دی، د خوشحال په ادبی مکتب کښې د هجری او قادر نه وروسته مقام لري ـــ د مینې د دنیا سره ډېر علاقه مند ښکاري وايي:

دعشق یو سبق کا فی دی    نور د درست جهان دفتر هیڅ

د نظامی (خسرو او شیرین) ئې هم پښتو کړی دی خو کمیاب دی.

٤ـ سکندر خان: د خوشحال ځوی دی، دده په کورنۍ کښې ښه ادبی مقام لري، وايي چه دیوان ئې نه پیدا کېږي. پادری هیوز ئې یو څو غزل په کلید افغانی کښې راوړی دی پښتانه شعرا لیکی چه ده د (مهر او مشتري) په نامه یو بل کتاب هم نظم کړی دی خو نایاب دی. دا بیت دده دی: ستا د زلفو مار چیچلی نه رغیږي ـــ په ستا نو په ز یار تو نو په دم هم

٥ـ گوهر خان: د ختک ځوی دی، وايي چه د شعر دیوان ئې هم درلود او ښه ادیب دی خو شعر ئې نه دی لیدل شوی.

٦ـ بهرام خان: دا هم د ختک ځوی دی، شاعر او لیکوال نکی و، په خپله خوشحال ختک وايي:

عطارد دی او ر قلم له لاسه کښېږدی    چه په دا خو بی بهرام انشا املا کا

دده اشعار هم نه دی لیدل شوی.

٧ـ حلیمه: د خوشحال خان لور او یوه ادیبه پښتنه وه، دا پښتنه شاعره محمد هوتک په پټه خزانه کښې بیان کړې ده، «پټه خزانه» داسې لیکي: حلیمه د خان لور او د عبدالقادر سکه خور کېده، د خپل پلار په ژوند ئې مروج علوم واوستل او بیا د شیخ سعید لاهوری مریده شوه روایت کا چه حلیمه فاضله او عارفه ښځه ده، او د خپل ورور عبدالقادر په کور کښې نورو ښځو ته لوستل کا، قرآن عظیم ئې هم په یاد دی، حلیمه بی بی په پښتو ښه اشعار هم وايي، او شعردا نان د پښتو ئې اشعار خوښوي ـ د تصوف او طریقت کتب ئې تول لوستلی دی د حلیمې په اشعارو کښې مجازی عشق نه ښکاري بلکه ټول شعرونه ئې د حقیقت پر لار دی او د محبوب حقیقی صفت کا) دالاندې یوه بدله ئې په خزانه کښې ضبط ده: له دغه ځایه ئې را نقل کوو.

داشنا په فکر خو ښه هسې شان شوم    نه پوهېږم چه ممتاز که نور جهان شوم
چه ئې کړ مه ستا په مینه سر فراز د    ثنا خوانه په څو رنګه د رحمان شوم
چه مجاز مې دا یا زولاړه له زړه نه    سر بلنده تر محمود غوندې سلطان شوم
وهر چاو ته چه گورم وا ړه دی دی،    د جمال په ننداره ئې شاد مان شوم
غیر فکر مې له زړه نه را بهر شو    پر خلیل و پر محمود باندې یکسان شوم
حلیمې د غماز مکر ز یات له حده شو    چه دې بیل له یاره نه کا په گمان شوم

ویلای شو چه د خوشحال په ادبی مکتب کښې د ا پښتنه هم یو ره مقام لري، په دې شعر کښې ئې د مینې او عشق سوز ښکاره دی.

۸ ـ افضل‌خان : داشرف‌خان ځوی اودخان‌نمسی‌دی ، دختټکو د کورنی یوځلاند ستوری اودنثر دمیدان یووتلی سړی دی ، دی د خوشحال دادبی مکتب په نثر کښې تر ټولو اول او دنثر په‌حصه کښې زیات حقدار ګڼل کیږی د ی دختټکو د کورنی یولایق ادیب ، عالم ، مورخ اوبوه مشرو ، دپلاردمرګ نه‌وروسته‌ئې (٦١) کاله ریاست کړی‌دی . کاظم‌شید اوایی چه‌په (۱۱۸۳) کښې مړشوی دی . آثارئې دادی : ۱ ـ تاریخ مرصع ، دادده یو مشهور شاهکار اودپښتو په‌تاریخ کښې یوخوزاولوړ کتاب‌دی ، دا کتاب مکمل نه‌پیدا کیږی صرف انګریزانوئې یوڅوبابونه په «ګلشن روه» او کلید افغانی کښې چاپ کړی دی پادری هیوز وایی چه تاریخ مرصع یوعمومی تاریخ و ، او د پښتنو اوختټکو حال پکښې‌دی . ۲ ـ داعثم کوفی تاریخ ـ په‌پښتو ترجمه‌ده . دا کتاب‌نه‌دی‌لیدل شوی ۳ ـ علمخانهٔ دانش دادریم کتاب ئې «د کلیلې اودمنې» څخه په (۱۱۲۸ ه) کښې ترجمه کړی دی‌ددې کتاب سبک اوطرز د ګلدستې‌پشان‌دی ، دا فضل خان‌نثر دهغه وخت څوره نثر ګڼل کیږی (نور تفصیل د ۱۳۲۰ په‌سالنامه کښې د پښتو دنثر په مقاله کښې وګوری ) داشعارو دیوان ئې چاخه‌نه دی ویلی خو په «علمخانهٔ دانش» کښې‌ئې ځای په‌ځای ځینې اشعاراوبیتونه لیدل کیږی .

۹ علیخان : دختټکو دبنې یو خوشنو ابلبل ، اویوناڅتو ادیب دی ، د افضل خان زوی اودخان کړوسی کیږی ، له‌علیخان‌څخه یووړوکی مګرقیمتی دیوان پاته‌دی ، دخیال نیلی ئې دعشق اومحبت په‌دنیا کښې زغلی ، ګله ګله اخلاقی اواجتماعی خوا هم راڅیی ، علیخان یوعالم سړی‌و ، دده په‌دیوانکښې ډیر علمی اصطلاحات شته‌دی ـ علیخان په‌خپل ټبر کښې دښه‌شهرت اونوم خاوندی ، ډیر وروستنی شاعران دده داشعارو ستاینه کوی ، دده‌پروخت دختټکو مشری هم کړې ده ، اوبیاله وطنه جلاشوی‌دی . له‌دیوانه‌ئې معلومیږی چه‌تر (۱۱۸۰ ه) پوری ژوندی‌و ، په‌ساده والی کښې ښه خوږ او خوندور کلام لری لکه چه وایی :

نه ښایی بی‌نیازه چه داهسی بی‌پروایی    هیردې شومه‌څه‌خومی خبر په‌حال لره

۱۰ کاظم خان‌شیدا : دعلیخان ورور دی ، دخوشحال‌په کورنی کښې‌دناز کخیالی استاد ، دلوړتخیل پیشوا ، اودجګ ادبی مقام څښتن بلل کیږی ، ده خپل شعر په ډیرو مزایاو اورنګارنګ خیالونو ښایسته کړ ، دخیال په‌دام کښې ئې ده‌رامار غان ونیول . دبلبلو سره وچغید ، دښتوتو تیانو په‌شان دادب په جګو څو ګو والوت ـ هرغزل اوهر شعرئې‌ته به وایی دیوه تخیلی ملک تصویر اونقشه ده . په‌تشبیهاتو او استعاراتو کښې طوفان کوی ، د کلام په‌نزاکت اولطافت کښې ډیر مهارت‌لری ځکه ورته ادبی خلق دهمید ماشوخیل‌دناز کخیالی دمکتب ملګری وایی . شیدا د عشق د دنیا سره کار لری ، ګرمی او حرارت غواړی ، دژوندون لوبه ئې بی‌له‌عشقه په‌بل څه‌نه ګرمیږی ، له‌بی درده اوبی سوزه ژونده بیزاردی

کله اجتماعي او اخلاقي خواته هم مخ اړوي ، کشران دمشرانو پیروي او مشران د کشرانو غمخوري ته رابلي او دلوړ همتي درس ور کوي . شیدا دزړه په وینو لړلي يوله جوشه ډك ديوان لري ده هم لکه دخپل نیکه اشرف خان دوطن په بېلتون کښې ډېري شپې له در داو غم سره تېري کړي دي . تر (۱۱۹۱ هـ) پوري ژوندی و او بیا په هند کښې مړ شوی دی .

دار باغي دده ده : طرفه صحراده شنه مرغزار دی موسم دسیل هنگام دښکار دی
له خو به پاخه غنو ده یاره زیبا گلونه شنا یسته بهار دی

۱۱ ـ اسدالله : دافضل خان مشر ځوی او دخان کړوسی دی ، شاعر او ادیب و ، دمستقل دیوان پته ئې نه لګي ، دخپلو دوو ورونو اکبر او اشرف په فراق کښې ئې یو غزل ویلی دی ، دالاندې دوه بیته ځنې لاس ته راغلي دي : (۱)

رودمې خلقه نن له دواړو سترګو پر ګر یوان دی
خدا ینې ود اشرف اکبر ماتم اورد نیران دی
نن د قیامت ورځ ده ، له قیامته لا بدتر ده
تلملي هغه شنه بوستان د مینې په خزان دی

۱۲ ـ سعادت خان : دافضل خان بل ځوی دی ، دی هم شاعر او ادیب دی ، دور ونو په بېلتون کښې ئې یو غزل ویلی دی :

خلقه نن مې په خاطر دغم نارې شوې په بېلتون مې دزړه مراوې منجرې شوې
دزړه کې خو نه په غم زما تالاشوه په نصیب مې د غمو نوا جارې شوې
فلك څه نا کړې دې ماته کړې دوخارې چه مې سترګې په ژړا کښې فوارې شوې
نوی نوی غم راځي زما په خو نه خبر نه یم دغم ماکره ديرې شوې
نه به بیاا شرف اکبر له قیده راشي نه به کمې دازماخوار شبګیرې شوې
نه به زه اکبر اشرف دوبا ره و ینم نه څه کمې په داکور زمونږ سورې شوې
چه دا هسې نا زېر ورورونه مې لاړل دوجو دولی مې ځکه پهارې شوې
شعر نه دی دا کبر اشرف ماتم دی دسعادت له خولې نه جوړې دامسرې شوې

۱۳ ـ اشرف ـ : دافضل خان ځوی او دپښتو شاعر دی : په دیوان ئې خبر نه یو ، دالاندې غزل ئې له یوه پخواني چاپي کتابه لاس ته راغلی دی :

مده و شوه چه سلام د یار را نغی خبر نه یم چه په څه ر یبار را نغی
گلدسته مې د خاطر نن پژ مر ده ده چه خبر راته د ورور او پلار را نغی
اې فلکه غم شنا دي ستا په وار وار ده چېري مابا نده دو صل وار را نغی

(۱) داسدالله ـ سعادت ـ اشرف ـ اکبر اشعار له یوه پخواني چاپي کتاب څخه رانقل شول .

ځو به زه د بېلتانه ستا یم ناسازي    په بوستان می دخاطر بهار رانغی
ماونه لیده هیڅوك داسی په‌عشق کښې    چه په دود بېلتانه کډ ار را نغی
په بنا دی پسی غمو نه‌وی اشرفه    کم یو گل دی ور سره چه‌خار رانغی

۱٤ ـ اکبر : دی‌هم د افضل‌ځوی ، اوپښتون شاعردی ، ددیوان څه‌معلومات ئې نشته ځو

داپیتونه ئې په‌یوه چاپی کتاب کښې‌لیدل شوی دی :

دسحر باده ورشه یارته زما داورزی

اکبر په غم کړېږی مدام ستا تنگی تکوری

فلکه‌څه دې وکړه جدا دی کړم له یاره

زه کړم په قید کښې کډ ران اشنا بهانا ست په کوری

خدایه دا شپه‌به‌دغم ستله‌رنها شی‌په ما    کهبه مدام رابا ندې بل د غموا وری
نه به بیا هغه مجلس جمع زمونږشی‌سره    نه‌به‌دخیال‌به‌بوستان جړی بلبل وښوری

۱۵ ـ خوشحال شهید : دسعدالله ځوی‌او د افضل‌خان نمسی‌دی . دپښتو ژبی شاعراو ادیب

گڼل کیږی ، پټه‌خزانه‌شعرا لیکی‌چه دپارسی‌په‌یو کتاب چه‌په(۱۱٦٦ ه) کښې لیکل شوی‌دی ،
دده‌یوڅو بیتونه تحریر شوی‌دی ، څه‌وخت ئې‌مشری هم کړی‌ده ، دخوشحال خان د مکتب
یو ښه شاعر معلو میږی . دی بیا د احمد شاه بابا په لښکر کښې د مرهټانو په
جنگ کښې په شهادت رسیدلی دی ، دا بیت دده دی :

تمام تن می وچ لرگی شو رگ می‌تار وربا ندې پریووت

زیروبم‌آواز تری خیژی هیڅ حاجت د رباب نشته

۱٦ ـ دوست‌محمد : ددی کورنی وروستنی‌شاعراو لیکوال‌دی‌دحاجی محمد اکرم ځوی
دمحمدزمان کړوسی‌دی او محمدزمان دعبدالقادرخټك د ځوی‌پاینده خان کړوسی گڼېږی
دی تخمیناً په (۱۲۲۰ ه) کال په‌قندهار کښې پیداشوی‌دی ، پلار ونه ئې له خټکو نه قندهارته
تللی او هلته‌میشت‌شوی دی ، دوست‌محمد نیکونو په‌شان په پښتو کښې ده پرو تا لیفاتو خاوندی
تقریباً دیرش‌څلویښت‌زره اشعار ئې‌ویلی‌دی په‌نثر کښې‌هم لیکونکی‌دی ، مذهبی‌او دینی‌مطالب
ئې‌په‌نظم کړی‌دی ، عالم ، فاضل اومتصوف‌سړی و ، شعرئې ساده‌او‌اسان دی‌دی‌دامیر‌شیرعلیخان
په‌وخت کښې پس له (۱۲۹۲ ه ) څخه مړشوی دی ، دا آثار ئې معلوم دی :

۱ ـ بحرالعلوم ، شل زره بیته دی ۲ ـ اخلاق احمدی ، یوولس‌زره بیته مثنوی ده
۳ ـ تفسیر بدرمنیر ، دواعظ کاشفی تفسیر حسینی ئې په‌دې نامه‌پښتو کړی‌دی ، ددې کتابی نثرساده
اوښه نردی ، دخټکو په سبك کښې داخل او په ترکیب کښې ئې دعربی اثر معلومیږی .

دخوشحال په کورنی کښې لیکوال اوشاعران هم‌دا ووچه بیان‌شول ، نور یکښې په‌یقین

نه‌دی معلوم - هغه‌چه‌لیکوال نه‌دی ؛ تش‌نومو نه‌ئې‌ښوول کیږی . دخوشحال ټول‌ځامن دیرش تنه دی ، شپږ تنه پکښې شاعران و و چه ذکر شول او د ځینو نومو نه چه د خوشحال له‌دیوانه معلوم شوی دی‌دادی : (بهرام- سعادت - کامران - یحیی - مجاهد- سدو - مالو جالو - عابدخان - خالد خان - نجو - شاکر - طاهر) په نمسو کښې ئې افضل خان شاعردی نوردادی :نامدار خان - عبدالله‌خان - دافضل‌خان ورونه‌دی - پاینده‌خان دعبدالقادر ځوی دی سرفراز دسعادت ځوی دی ، دقرآن حافظ اوپه‌خط کښې بی مثله‌و . په کړوسو کښې‌ئې شپږ تنه‌شاعران ، اوشپږ واړه‌دافضل خان‌ځامن‌دی . مخکښې‌ذکرشول - دوه‌نورځامن ئې سعدالله اوحسن‌علیخان نومیږی . بل کړوسی ئې‌دپاینده خان‌ځوی زرنام‌دی . دسعدالله‌په‌اتوځامنو کښې یوخوشحال شاعردی ، نورئې دادی : شهباز - سعادتمند - جعفر - افضل - شرافت - لطف‌الله هم‌دغسې ورپسې‌ډېرشوی‌دی ،- زیاتی دټولو‌دنومونو بیان‌ضروری نه‌ښکاری! په‌دې‌ځای باندې غواړم چه خپله مقاله ختمه کړم - دستی که ژو ندو تر بله کاله پورې دخدای په‌امان -

په‌دې‌مقاله کښې‌دا کتابونه کتل شوی اواخستنه‌ځنې شوې‌ده .

۱-دمخزن‌الاسلام دوه درې قلمی‌نسخی = داخون درویزه

۲- تذکرة الابرار و الاشرار = » »

۳- مخزن‌افغانی قلمی = دنعمت الله

٤- خورشید جهان - دشیر محمد

٥- پټه‌خزانه قلمی = دمحمد هوتك

٦- دبستان مذاهب = دمحسن کشمیری

۷- تاریخ‌مغول هند قلمی = دښاغلی حبیبی

۸- د ۱۳۱۷ کال‌دانیس په‌شمارو کښې‌دښاغلی‌خوګیانی مقالی

۹- پښتانه شعرا

۱۰- د۱۳۲۰ په‌سالنامه کښې = دپښتود نثر مقاله

۱۱- دلودهیانی د۱۹٤۰ ع‌دمارچ داتحادافغان مجله

۱۲- دپروفیسر محمد شفیع تاریخ

۱۳- د۱۳۱۹ سالنامه

۱٤- دخوشحال‌ددیوان مقدمه دحبیبی

۱٥- یوپخوانی‌چاپی کتاب چه‌غالباًبهار ګلشن‌به‌وی

۱٦- ددولت، حافظ‌الپوری‌مرزا، علیخان اونورو دیوانونه

۱۷- ځینی‌نور متفرق یادداشتونه

۱۸- د۱۳۲۰ په‌سالنامه کښې‌دښاغلی‌خادم‌مقاله

# د پښتو ځینې هېرشوي لغتونه

ښاغلی عزیز الرحمن «سیفي»

لکه چه تاسې ته کله کله خپله حافظه د ژوندانه خواږه خاطرات په یادوي یا در ته خپل تاریخ د پلرو او نیکو لوړې کارنامې ښئي او تاسې پرې افتخار کوئ، دا کوچنۍ مقاله هم هغه خواږه کلمات او هېرشوي لغتونه دریادوي چه ستاسې د پلرو او نیکو په ژبو کښې ئې ځای درلود او د دوی د افکارو ترجمانی ئې کوله.

دا ارمغان تاسې په خواره سترگه مه گورئ او په بې اعتنائۍ ورځنې مه تېرېږئ، ځکه چه دا کلمات ستاسې د اسلافو په ژبه جاري و او په ډېرو غوږونو کښې ئې ځای درلود.

که تاسې له خپلو سپینو خاورو څخه ښه لعلونه راوباسئ، هغه به ستاسې مادي پانگه زیاته کړي مگر که له خپلو زړو کتابونو او پخواني ادب څخه ځینې لغات او کلمات راپیدا کړئ، ستاسې د شعر و ادب ذخیره به ئې زیاتېږي او ښایسته کېږي.

هغه لعلونه د پېغلو جونو امېل او لونگین ښکلي کوي مگر دا مرغلري د شعر و ادب قیمت لوړوي او رنگین کوي ئې، هغه ثروت به مو د ښارونو په آبادولو او مدني پېشرفت کښې په کار شي مگر دا جواهر به مو په عرفاني او ادبي نړۍ کښې زیب و زینت پیدا کړي.

زمونږ د ملي ژبې پښتو په زړو آثارو کښې ډېر داسې لغات شته چه نن ئې خوک په معنی نه پوهېږي یا ئې د معنی په تعین او تحدید کښې سهوه کېږي او واضح مطلب ورځنې نشي اخستلی، نو ددې د پاره چه مونږ خپل دغه راز لغات او کلمات د نسیان او فراموشۍ له خپورا وباسو او بېرته ئې ژوندي کړو دلته دغه راز لغتونه راوړو او معنی ئې هم د ځینې ادبي شواهدو په استناد ښیو. گوندې د ځینو لوستونکو د پاره د استفادې وړ وبلل شي او د ژبې په ادبي خدمتونو کښې حساب شي.

دلته باید دا خبره هم وکړو چه هېرشوي او غیرمانوس لغات هم په یوه ځای او بل ځای کښې فرق کوي د همدې لامله ډېر لغتونه پیدا کولی شو چه د پښتنو په یوه خوا کښې نشته او خوک ئې په معنی نه پوهېږي مگر په یوه بل ځای کښې ښه شهرت او عمومیت لري نو که زمونږ په دې مقاله کښې هم ځینې داسې لغتونه وي چه بعضي لوستونکي ورسره اشناوي او نه ئې وي هېر کړي، ښائي چه په یوه بله لته کښې به ئې خوک نه پېژني یا به ئې په کومه بله معنی اروېدلي دي نو هیله کېږي چه لوستونکي دغه نکته په نظر کښې ونیسي او په مونږ باندې اعتراض ونکړي وروسته له دې لنډ تمهید څخه اوس غواړم چه په اصل مطلب پېل وکړم:

بلوسېدل:- دالغت اوس هم مشرقي خوا ته مستعمل دی چه د تعرض معنی لري مګر زمونږ ځينې ليکوال ته
په نوي معلوم او په ځينې ځايو کښې به هېر شوی وي. دالغت د خوشحال خان په ديوان کښې هم
خو خو ځايه راغلی دی چه يو مثال ئې دا دی:-

چه په خوږ وژند و نور بلوسنی سزا و مي — نه چه خو ار شو په دنيا غماز ما

نغوته:- داشاري معنی افاده کوي او په زړو آثارو کښې ئې ډېر ځايونه موموچه يو مثال ئې دا دی:

خوا رهغه چه د غليم په نغوته در ومي — مدعی غليم د نيکو نصيحت کا

(خوشحال)

جوس- د کوځې او غوړي معنی ور کوي لکه په دې بيت کښې:-

د جهان خوبنې همه د هغه کس ده — چه ئې ميشته د محبوبې په جوس ده

(خوشحال)

په دې بيت کښې مېشتېدل هم د استوګنې په معنی دی چه اوس دومره ډېر استعمال نلري.

ونډه:- د برخې معنی ور کوي او ونډې ئې جمع راځی لکه په دې بيت کښې:

چه په بې خدايه يقين په نور شه کا ندي — د هغوی د ايمان يووډې شيطان ونډې

(خوشحال)

بور:- د ډېر رنګ معنی ور کوي لکه چه په دې بيت کښې را غلی دی:-

هسې يار عبدالقادر په بخره بيا موند — چه صورت ئې د سرې خصلت د بور

بکس:- د ډېر لږ او کم شي معنی ور کوي په لاندې بيت کښې په د غه معنی ليدل کېږي.

ساقي زه د صافو مېو لايق نه يم — هزار شکر که دا دو کړې د بکس

«عبدالقادر»

او د يوسفزو په محاوره کښې په دې توري پوري د تصغير په ډول (کی) هم زيات وي، او
«بکسکی» ويل کېږي هغوی عموماً دالفظ د دارو په ډېر لږ مقدار کښې استعمالوي
او داسې وائي «يو بکسکی دارو مې وخوړل»

ډنبره:- يو راز د غره ونه ده، د ميو د دانو غنچه شه قدر کوچنی، وړې وړې سور بخنی دانې کوي
چه د کټوي په مسالو کښې هم استعمالېږي او د دغه ونې لرګي غوټې غوټې وي، ځينې مستانه
ځلمي ورڅخه کوتک جوړوي او له ځان سره ئې د وسلې په ځای ګرځوي، لکه چه په دې
بيت کښې راغلی دی:

محتسب دی ځينې لېرې لېرې ګرځي — مست خوشحال څخه کوتک دی د ډنبرې

او د کوم سړي په وجود چه ډېرې دانې او تنکي راوخيږي نو د تشبيه په ډول ويلی شي چه د فلانی
څخه د ډنبرو لرګی جوړ شوی دی. او ډنبره «کاوزنبور» ته هم وائي چه جمع ئې ډنبرې راځي.

هور : ـ دځالي معنى افاده کوى لکه پدى بيت کښي :

يويو هوردى چه شاهين ځنى الوځى | شيګرك لګړ مګړ لـه هوره هره

( خوشحال )

شاهدىلل : ـ دالفظ دشاهدى دور کولو او اداکولو په معنى دى او پخوانو اديبانو په خپلو آثاروکښي استعمال کړىدى لکه پدي مثال کښي :

دروغجن وعده خلافه | نه دى کا دمردى لافه

شاهدى لى د دروغو | په خپل ځان باندى خلافه

( عبدالقادر )

ګيدى : ـ دخرمعنى افاده کوى او په پخوانو ادبياتو ګيدى دخره په ځاى ډېر استعمال شوىدى لکه دخوشحال خان پدي بيت کښي :

چه د اهسى ځينى زېږى ګيدى خر | پهمادر کښي ئې بلاوى کهپه پلار کښي

ورچانى : ـ دباندى معنى افاده کوى لکه پدى بيت کښي :

زاهد ورچانى انکار کوى لهعشقه | نـلد من ليلى مجنون اولى په کور

(خوشحال)

او دسوات په علاقه کښي دالغت بيدو دباندى په ځاى په عامه محاوره کښي استعمالوى مثلاً يو بل ته والى راځه چه ورچانى ولاړ شو ـ يعنى دباندى ولاړ شو .

نمرى : ـ دکاليو پهمعنى راغلىدى لکه چه لهدي لاندى بيت څخه معلومېږى :

سپين والهنشى دزړه پهسپينه زيره | پهسپين والى بهدنمريونشى ځان سپين

دا لغت دسوات اوبنير په علاقه کښي داسى عموميت لرى لکه زمونږ په محاوره کښي چه ئې کالى لرى . اوبالکل دجامو اودکالو په معنى استعمالېږى ـ پهپخوانى ادب کښي هم ډېر ليدل شوى دى .

ښك : ـ دغوږ ايښولو اوتوجه کولو معنى ورکوى لکه پدي شعر کښي :

خپل غوږ ونهورته ښك کړه ګنندىوا روى | راز د مينـى د بلبلو له لوزه

(خوشحال)

تروته : ـ دتاوان اوخساري پهمعنى راغلىدى لکه چه پهدي لاندى بيت کښي پهدغه معنى ګورو :

چهسودا کـابى دښکليو له ښهمخه | عاقبت به دهغه سوداشى تروته

او پهځينو محاورو کښي دبار او تاوان ددواړو پهمعنى استعمالېږى لکه چه والى فلانى پهفلانى تروتهشو يعنى بار اوتاوان شو .

ږبله : ـ دسيند يوىوړي چرى تهوائى چهلهلوى سيندڅخه پهبلهغاړه بيله شوى وى ، اوپهمينځ

کښې ئې خه حصه وچه یعنې تاپو جوړ شوی وی لکه چه په دې بیت کښې دغه معنی ورکوی:

بېړۍ گرځی په بېلـه کښې　　په قلزم گرځی جهـاز
(خوشحال)

کاږ اوټاپو او وړې جزیرې ته هم وایی:

کاږ: - هغو کوچنو او غټو کاڼو او ډبرو ته ویل کېږی چه په یو ځای کښې په زیاته اندازه جمع شوی او پراته وی، یا سیلاب په یوه شېله کښې په ډېر مقدار غورځولی وی لکه په دې بیت کښې:

په خواری مونده شی کام له ډېر زړونو　　په محنت سره سره زر خېژی له کاږه

روگی بوگی: - روگ بوگ کول او روگی بوگی کول دا دو اړه محاورې معنی او مطلب دادی: چه دوه تنه په خپل منځ کښې جنگ وکړی او په جنگ کښې ورځنه کالی وغیره وشلوی او یا یو سړی د انسان کالو ته حواله واچوی او کالی ورځنه وشلوی نو په دې صورت کښې وائی چه فلانی فلانی روگی بوگی کړ او یا فلانی سړی روگی بوگی کړ او دا بیت هم عیناً همدغه پورته مطالب افاده کوی:

درسته شپه دی په کوځه کښې مرم له سوکه　　لاسوې مات شه که دی نکړم روگه بوگه
(خوشحال)

نموزه: - نموزل د زمنځولو معنی افاده کوی لکه په دې بیت کښې:

پکښې زړه د خوار خوشحال دی چه خوږ نشی　　د مېـنې ورو ورو د شـړی ز لفینې نمـوزه

شومی: - شومل د شکلو په معنی په ځینو محاورو کښې مشهور لغت دی چه پخوا نو ادیبانو هم په خپلو ادبیاتو کښې استعمال کړی دی لکه په دې بیت کښې:

چه تریخی ئې د بېلتون کړه په ځان تېره　　هم هغه به ئې د وصل بیا له شومی
(عبدالقادر)

کسه: - کسل او کتل دو اړه یوه معنی اری لکن په ځینو محاورو کښې یو لغت او په ځینو محاورو کښې بل لغت ډېر عمومیت اری لکه چه وگوره په یوه محاوره کښې عام او په بله محاوره کښې نا اشنا لغت کنل کېږی همدغه شان په ځینو محاورو کښې وکسه عمومیت اری دا لغت په پخوانو ادبیاتو کښې هم استعمال شوی دی لکه په دې بیت کښې:

دا زما زړگی په غېل زړگوتی نسه　　چه دز پره دی زما زړه هم هسې کسه
(خوشحال)

پلاز: - د تخت په معنی، او پخوانی ادبی لغت دی، د ملا مست په لاندی بیت کښې په دغه معنی راغلی دی:

دجنت ښا یسته حوری به ئې خاندی هوښېږی چه ناستی ئې دنورو نوېر پلا زوی

اوزم : - سپوږمۍ ته وائی — دملامست پهدې مسری کښې ئې وکوری :

«دوه ډیوې یکښې بلېږی اوزم نمرستا»

پسو ایل : د آرا ستن په معنی دی، یعنی په ګانه ښا یسته کولو ته وائی، پخوانی لغت دی په محاوره کښې او س نشته، خو دپښتو به ډیو انونو کښې ډیر راغلی دی لکه چه مطیع الله وایی

( دنیاده ناوی ښکلې پسوللې )

اولپه - پخوانی ادبی لغت، او د «سوخته تر» په معنی دی، مطیع الله وایی :

مستیم دمحبوبی د باهو په ترانه باندی وسوی اولپه شوې ددی مستی په جلوه باندی

نغوزل - داوربل او په معنی مصد ر دی - نغوزل دغوزله کلمې نه جوړ شوی دی، یو عجیبه کیف اری، یعنی دغوز کار ته چه اوربل دی نغوزل وایی، مګر په نغوز لو کښې په غور اوربل زیات مراد دی - پیر محمد وایی :

هر نادان د ی د دانا خبره نغوږی مرید حق ته دمرشد په ارشاد رسی

نیاو : - دعدل او داد په معنی او یو پخوانی ادبی لغت دی، حمید ډیر استعمال کړی دی لکه چه وائی :

دابی نیاوه بادشاهی د تر کوګوره چه په د رئې نه قبلېږ ی د چا عرض

خو په محاوره کښې او س بالکل نه معلومېږی.

ژمنه : - ژمنه دوعدې معنی افاده کوی لکه په دې بیت کښې :

هیڅ په ژمنه په سوګند پروادارنه دی په دروغ دروغ و پلو ا فتخا ر کړی

( عبدالقادر )

شولانونه : - شولانونه دطعامو نوا وخورا کونو معنی افاده کوی لکه په دی بیت کښې :

اون اون شولانونه د شاهانو دهردررا اره بس دی څوکنډه که

ونهی مار : - دالفظ دقصاب معنی افا ده کوی لکه په دې بیت کښې :

هله وکوشت مې شو خو راك د رقیبانو ونهی ماردی پرېکوی مې بې پیونده

(علیخان)

بوښته : - د دلدل معنی افاده کوی لکه په دې بیت کښې :

هسی رنګه یمه ډوب دغم په بوښته چه مې طمع ور که شوی دداه ژوندنه

(علیخان)

په قند هار کښې تر اوسه هم (بوښت) هغه شی ته وایی چه په دلدل کښې بند وی.

کروړه :- دقمچین معنی افاده کوی لکه پهدې بیت کښې :

چه خو ړلی می د هجرکړ وړه ده    لاتر اوسه می په زړه روغه موړه ده
«علی خان»

اتال:- دمعطلی معنی افاده کوی لکه پهدې بیت کښې :-

خو شاه خو با ن بالښت لهرانهشیزما    سامی پهصورت کښېترهغې اتال لره
«علی خان»

تبل:- دبرهارونو دمعالجې معنی افاده کوی لکه پدې بیت کښې .

دلبا س پېی پر ی مه ز ده درو غژ نه    نه دی ما آموخته کړی‌ء په تبل زړه
«علی خان»

رواك:- دنقد معنی افاده کوی لکه په دی بیت کښې :

اوښې وینی رو ـکی ور کوم پهپور دوصل    شوم بایع دروکو پیرودونکی دنسایم
«علی خان»

پهقندهار کښې‌اوس روکك صاف صریح اوښکارهته وایی .

بیاسته :- درسی او پړی معنی افا ده کو ی ؛ لیکن د یو سف زو په محاوه کښې بیا سته غټ اوډېر اوی پړی ته وائی لکه په دې بیت کښې :

پهځای د ننګ زدم سرو مال د وا ړه    دا شنا بیا سته ز ما ده غا ړ ه
«علی خان»

پاهه :- هغو مالو چوته وائی چه د پرهار د پاسه ئې زدی او پټی ور باندی تړی لکه پهدې بیت کښې :

ـکه د صبر پنبه زدم په ز خم سوزی    لا د لاسه اخلی پا هه او ر لما
(علی خان)

نیز :- دسیلاب پهمعنی دی لکه پدی بیت کښې :-

زړه می سیند دفراق ډوب کړ ځکه ژاړم    چهنیز ډېرراغی کمروته زیموخوت
«علیخان»

اوزیم تهپهفارسی کښې زا وائی :

کاکوړه :- حنظل ته وائی لکه پدې بیت کښې :

ما کښه له هند وانه مجا ز ی مینه    چهمی وڅکله ترخه زار ڪاکوړه ده
«علیخان»

بوه :ـ دنخښي او هدف معنى افاده کوي لکه په دې بيت کښې :

چه د سر په ځاى سينه راته بوه کا　　　　هم هغه به د ښو په غشو ولم

غلوځه :ـ دشاتو مچى ته وائى لکه چه دا بيت ددى مطلب افاده کوى .

که په رنګ کښې لکه غلوځه هسې روغ دى　　　　دخوز وهياه رنکړه له غو بالږى

«خوشحال»

ارغونى :ـ ديخوانى او سابق معنى افاده کړى لکه په دې بيت کښې :

خال هو ښيار دى زه ليونى يم　　　　نه او سنى يم لا ارغونى يم

«خوشحال»

کازمن :ـ دمشتاق او لېوال معنى افاده کوى لکه په دې بيت کښې :

موږ د شکرو حلواته نه ګورى　　　　رزى دسپورى دوډۍ کازمن وى

ورسون :ـ داتورى د پند او نصيحت معنى افاده کوى لکه په دې بيت کښې :

پند دنيکخواه دى خداى د ئې ښه ارى　　　　ورسون دنيکو نيکان په زړه ارى

«خوشحال»

# مهمترین اختراعات مدنی و ایجادات حربی

بناغلی میر علی اصغر شعاع :

موضوع ایجادات وابتکارات علمی در هردوره ازاد وارزندگی برجستگی واهمیت مخصوصی دارد. آری دماغ حساس انسانی صدها وهزارها سال مصروف تتبعات و تحقیقات ساینسی بوده واینک امروزما ازثمرهٔ آن همه مجاهدت ها وافکار قیمتدار آنها استفاده های زیادی مینمائیم. باری اگر به نگاه تامل بنگریم و در صفحات تاریخ نهضت علمی بشر را مطالعه نمائیم باین حقیقت معترف خواهیم شد که این همه مخترعات بصورت آنی بمیان نیامده وتنها محصول دست ودماغ پسران قرن بیست دانسته نمیشود. اینست که میگویند : (در تحت آفتاب چیز نوی وجود ندارد) . ولی قرن اخیر ازین لحاظ بیشتر ازدیگر قرون جلب توجه می نماید که در خلال آن دو جنگ عظیمی رو دادودر آوان محاربه و سنوات بین این دو حرب افکار علما و متخصصین فزونتر ازدیگر اوقات بطرف ساینس وتقدم علمی اولتر از همه متوجه گردید تادرسایهٔ جنبش علمی بتوانند آرزوها و مقاصد متعددهٔ مدنی وحربی خود رابرآورند. بالاخص درظرف این چهار سال جنگ پیشرفتهای فوق العاده مهم ، ایجادات بس بزرگی که ازهر حیث اهمیت وتاثیر مهمی در سرنوشت صلح وجنگ وارد میکنند روداده ودول متحارب هر کدام منتهای سعی بعمل می آورندتا ازین راه بررقباء غلبه وتفوق حاصل کنند .



میر علی اصغر « شعاع »

امروز، احتیاج وضرورت آنهارا وادار نموده تادربدل موادطبیعی نادرالوجودازاشیای مصنوعی وکیمیاوی استفاده نمایند بنابرآن علماء ومتخصصین آنهاشب وروزبه کوشش وسعی علمی میپردازند وتحقیقات خودرادر خصوص مواد مصنوعی وایجادچیزهای نوادامه میدهند و

بدرجهٔ آن را تزاید بخشیده اند که این عصر را اگر عصر مواد کیمیاوی هم بگوئیم جادارد چنانچه قبلاً لفظ آهن، حجر را به عصور قدیمهٔ انسانها اطلاق می نمودند .

اینک مختصری از ایجادات وابتکارات ممالک مهمهٔ عالم را که در ظرف سال ۱۹۴۳ بمیان آمده و در ساحات محاربه وغیر آن استفاده های زیادی از آنها نموده اند از مطالعهٔ خوانندگان محترم کابلی میگذرانیم .

## فریب دادن طیارات دشمن

در حرب هوائی عصری حیله های جنگی مهمی ابداع گردیده واین حیله ها عموماً باصول علمی وساینسی اتکاء دارد وباپیشرفت های دیگر جنگی ازقبیل ساختمان گلوله های جدید، بمب های مدهش وآتش افروز دوش بدوش پیشرفت کرده است. زمانیکه المانها طیارات مهاجم خودرا جهت حمله متوجه انگلستان نمودند درین ضمن برای ارشاد ورهنمائی آنها امواج بی سیم را هم بطرف هدف های ایشان در انگلستان باصول علمی توجه دادند. چون علمای انگلستان این ابتکار آلمان ها وتاثیر آنرا ملاحظه کردند آنها نیز برای خنثی ساختن امواج مذکور داخل اقدامات شدند وباین عمل جواب دادند .

المانها ازقارهٔ اروپا دوموج بی سیم را متوجه انگلستان می نمودند واین دوموج ازدو ناحیهٔ مختلف که یکی ازدیگر بعد تمامی دارند خارج میگردید مخصوصاً این عمل در هنگام شب صورت میگرفت باین قسم که دوموج مذکور دریك موضع بالای برطانیه باهم تقاطع می نمودند در آن محل طیارات به بمباری شروع میکردند زیرا هدف آنها موضع تقاطع این دوموج به همدیگر دانسته می شد علمای بیسیم برطانوی این اختراع وحیله را کشف کرده ودرنتیجه یك نوع تقاطع کاذب امواج بی سیم را بروی کار آوردند . زمانیکه المانها به حمله بالای برطانیه میپرداختند چون این تقاطع امواج را ملاحظه میکردند تصور می نمودند که هدف ایشان درهمین موضع میباشد بنابران به بمباری میپرداختند وحال آنکه بمب های ایشان بلانتیجه بالای میدانها ومزارع می افتاد بعدازآن متدرجاً برطانوی ها این طریقه را ترقی داده وطول امواج بی سیم را برابر طول امواج بی سیم المان گردانیدند ودرنتیجه طیارات را از مجری اصلی شان منحرف میساختند طیارات المان چون به پرواز میپرداختند این تقاطع امواج آنهارا به تکلیف گرفتار ساخته وبعد ازآنکه مدت مدیدی سرگردان هرطرف میگشتند اخیراً یا دربحر یا مواضع دیگر بمب های خودرا افگنده بدون گرفتن کدام نتیجه مراجعت میکردند .

## ابتکارات مهم در طیاره

از ابتکارات مهمیکه درطیاره نموده‌اند یکی عبارت است از تغییردادن وضعیت طیاره درهنگامیکه خودرا بخطر مقابل می بیند بایطوریکه پیلوت کاری مینماید تاطیاره در حال احتراق ویاسقوط بنظر آید وبعدازانفال ازموقع خطرنجات حاصل میکند. چنانچه المانها بعضی ازطیارات حربی خودرا بمواد کیمیاوی مجهز نموده‌اند وازین مواد یك طبقهٔ غلیظ دود مانند ابر کثیف تشکیل میشود . بیننده تصور مینماید که طیاره درحال احتراق است. عین همین وضعیت را درجنگ تحت البحریها هم بکار برده‌اند به این قسم که مقدار نفت وموادسوخت را در داخل خود خزینه نموده وچون وقت خطررسید مواد مذکوررا ازخود خارج میکند. این مواد به روی آب می آیند عملهٔ جهازات ضد تحت البحری گمان میکنند که تحت البحری مذکور غرق گردیده است .

## افروختن آتش برای گمراه نمودن طیارات حمله آور

درتابستان ۱۹٤۱ یکی از رجال امریکائی وارد برلین گردید وبالای یکی ازطرق نزدیك برلین قدم میزد دراثنای حرکت بمشاهدهٔ ابتکار وحیلهٔ عجیب المانها موفق گردید او ملاحظه کرد که بالای مزرعه شبکهٔ سیمها بدون احاطه ودیواری ممتد گردیده است پس از آن خوب دقت نمود وچنین دریافت که سیمهای مذکور ازین یك خندق ممتد گردیده وازیك بنای بسیار کوچك که بفاصلهٔ نیم میل ازین خندق دور است باطراف منتشر شده است. این بنا هیچ سقف یا روزنه وغیره نداشت زمین های اطراف این بنا از بورهٔ چوب وباقی فضلات فرش شده بود واین سیم ها بیك سوچ برقی درداخل خندق بهم متصل شده بودند . چون سوچ رامیزدند جریان برقی بورهٔ چوب رامشتعل کرده شعله‌های آن ازبین سیمهای شبکه مانند آنجا خارج شده وعیناً به عمارات محترقه شباهت بهم میرسانید . این عمل طیارات مهاجم برطانیه را فریب داده وبه آنها چنین می فهماند که دراثر بمباری ایشان حریق ها وآتش افروزی بزرگی رو داده است .

## تقلید موجودات حیه وشهرها جهت فریب دادن طیارات مهاجم

این مخبر امریکائی دربرلین طرق ، راه‌های آهن ، مصانع تقلیدی زیادی راجهت فریب دادن طیارات مهاجم ملاحظه کرده که چندین میل ممتد گردیده است. اومیگوید که قفس های بسیار بزرگی در برلین تهیه کرده اند ونقل آن ها از جائی به جائی امکان دارد درهر قفس چراغ برقی وجود دارد و این قفس ها چنین بنظر می آیند که گویا تماماً

شهر برلین و عمارات آن میباشند در هنگام شب چراغ این قفس هارا بصورت خیره روشن میکنند وبرای حفظ این شهر وفریب دادن دشمن چندعدد توپهای طیاره شکن وغیره هم در مواضع مختلفهٔ آن تعبیه کرده اند . المانها همینطور یك شهر جعلی در کولون هم تهیه نموده اند و انحناء عجیبی را مانند انحناء رود راین در آن بروی کار آورده اند المانها قبل از حملهٔ خود بالای روسیه در شهر پلویستی رومانیه هم فابریکه های تقطیر تیل ومواضع استخراج آنرا مصنوعاً درست نموده وباصول کیمیاوی دودسیاهی تهیه میکردند تامعلوم شود که بمب طیارات در آن خرابی های زیادی وارد کرده وحالانکه تمام آنها جعلی وتقلیدی بوده است.

## فابریکه های جعلی

درانگلستان چون ملاحظه نمودند که نزدیك است مصانع مشهوره هدف بمب های المان قرار یابد بنابران درقرب آنها بناهای جعلی ارزانی تهیه نمودند . درهنگام شب چراغهای حقیقی فابریکه هارا خاموش کرده و بعضی ازچراغهای مصانع جعلی را برای فریب دادن طیارات روشن میگذارند ودرنتیجه طیارات مذکور بدون تحصیل کدام نتیجه بمب های قیمتی خود را فرو میریزند یکی ازناظرین امریکائی که تازه از برطانیه مراجعت نموده است میگوید که تقریباً ثلث میدان های فضائی برطانیه جعلی ودوثلث دیگر حقیقیست . المانها شکل برلین را کاملاً تغیر داده وآنرا ازنظر طیارات بکلی پنهان ساخته اند مثلاً بالای بامهارا ازگل های برگ دار وسبزه ها پوشانده وبحیرات خودرا کاملاً ازسیم مخفی ساخته وامثال همچه اقدامات را درمختلف نواحی وشهرهای المان بموقع اجراء گذارده اند . ولی اخیراً وضعیت طبیعی وفوتوگرافی ها تاحدی این تقلیات وامور جعلی را کشف نموده چه طبق مقتضیات فصول باید این تقلبات تحول یابد .

## طیارهٔ پلاستیکی درعوض فلزی

فابریکه های اتوموبیل سازی ولایات متحدهٔ امریکا چنین نظریه دارند که بعد ازجنگ موترها تماما از پلاستیك ساخته خواهند شد وموترهای مذکور نسبت به موترهای فلزی سبکتر ، محکمتر وارزانتر بوده وتزئینات بیشتری در آنها صورت خواهد گرفت یك کمپنی موتر سازی درین اواخر پیتنت ونمونهٔ هم ازین نوع موتر پلاستیکی تهیهٔ دیده است . مواد پلاستیکی که بلااستفاده افتاده اند به مقدار زیادی دستیاب میشود چنانچه کاغذهای ردی وبیکاره ، بته های جواری ، کاه گندم ، بورهٔ چوب وامثال آن منبع بزرگ تهیهٔ پلاستیك دانسته میشوند . همچنان دربارهٔ طیارهٔ پلاستیکی تجربه نموده وتجربه های ایشان کامیابانه

صورت گرفته است . اکنون شیشهٔ طیاره ، آله های مخصوص مطالعه و عینک ها از پلاستیک تهیه شده و حتی روزنامه ها به پلاستیک طبع کرده اند .



## پروانهٔ نوع جدید

نوع جدید پروانه را که درین فوتو ملاحظه میکنید از ابتکارات جدیده بوده و درین اواخر آنرا در میدان طیاره امتحان و تجربه نموده اند . این اختراع عبارت است از دو پروانهٔ سه پره که در طیاره یکی بعد دیگری نصب شده و بذریعهٔ یك انجن بحرکت و گردش می آیند یکی ازین پروانه ها از طرف چپ براست در حرکت میباشد و حالانکه پروانهٔ دیگر بر ضد حرکت پروانهٔ اولی بگردش می آید طوریکه مبتکرین این اختراع اظهار مینمایند این تزئید پروانه در اثر جی و قوت طیاره می افزاید .

## طیارات تارپیدو انداز بحری اتازونی

جدیداً در بحریهٔ اتازونی طیارهٔ تارپید واندازی موسوم به اونجر راطوری آماده ساخته اند که بالهای آن قابلیت قات شدن را دارد عملقات نمودن بالهای طیارهٔ مذکور در ظرف چند ثانیه بذریعهٔ یك ماشین مخصوص دیگری صورت میگیرد این وضعیت به جهاز طیاره بردار تسهیلات زیادی فراهم میسازد . این طیاره باخود تارپیدو ئی را بوزن ۱۹۵۰ پوند بر داشته و از ارتفاع کم آنرا بالای هدف افگنده میتواند .



## جهاز حامل طیاره



این فوتویکی ازجهازهای مشهورحامل طیارهٔ برطانیه‌را نشان میدهد. این جهاز پس ازآنکه در بدرقهٔ قافلهٔ مشهور جهاز هائیکه بطرف مالتا اعزام شده بود خدمت های زیادی نمود و سپس در اشغال جزیرهٔ مدغاسکر فعالیت های زیادی ازخود نشان داد باردیگرمورد ترمیم و اصلاحات قرار یافته و اینک استفاده های زیادی از آن می نمایند درفوتوی مذکورچیزیکه بیشتربرجستگی دارد همانا طیاره ایست که از داخل جهازبالا آورده میشود درحالیکه بالهای طیاره قات میباشد این قات‌شدن بال طیاره البته از ابتکارات جنگی جدید دانسته میشود.

## طعام طیاره رانها و تمدد غاز معده

طعام پیلوتها وطیاره‌رانها اتصال وپیوستگی کاملی به‌قدرت آنها در قتال دارد چنانچه ازحقائق جدیدهٔ که کشف نموده اند این حقیقت به‌خوبی واضح میگردد که وقتی ارتفاع طیاره ازسطح ارض غاز معده هم تمدد حاصل میکند مثلاً درارتفاع ۱۸ هزار فت حجم غاز مذکور دوچند حجم‌مستوی آن درسطح زمین دانسته میشود ودر ارتفاع ۴۲ هزارفت این حجم شش برابر حجم اصلی آن میگردد. این تمدد عوارضی‌را در عضلات تولید وآلامی‌را که تا ۲۴ ساعت هم‌دوام مییابد واردمیکند. لذا بهتراست که طیاره رانها روزانه پنجمرتبه طعام‌صرف نمایند. ودرهر مرتبه مقدار طعامی راکه صرف میکنند اندك ولی دارای خاصیت باشد. از مشروبات غازدار امثال سودا وغیره بایدطیاره رانها خودداری کنند.

## برج های اشعهٔ بی‌سیم بجهت هدایت طیارات

در وقت شروع طیران تجارتی شبانه در ولایات متحدهٔ امریکا برجها ومناره های مخصوصی که‌ازان شعاعات جهت هدایت طیارات منتشر میشد تعمیر نمودند ولی کثرت ابرها وغبار این‌اشعه راازنظردور نگه‌میداشت امااابرهای مذکورمانع شعاع بیسیم شده نمیتوانستند بنا بران در ین‌اواخر برای‌هدایت طیارات ازشعاعات بی‌سیم استفاده نمودند لذا به‌عوض برج های نورافکن قدیمی ازبرج های شعاع بیسیم و کوتاه که ازفوق ابرها هم دیده میشود

کارمیگیرند . اینطریق در ارشاد کشتی ها بمقابلهٔ دمه وغبار کثیف هم بکار میرود .

## بمب افگن‌های جدید

قوای بحری اتازونی جدیداً طیارات محافظ بحری نوی بمیان آورده اندکه دارای اهمیت مخصوصی میباشد طیارات مذکور از نوع طیارات ونتورا دانسته میشود وعساکر اتازونی وبرطانوی ازعرصهٔ چندین ماه است که آنرامورد استفاده قرار داده اند این طیاره بمقابل تحت البحر یها عملیات خیلی مهم و مؤثری رابموقع اجرا میگذارد طیارات مذکور باخود تارپید و ویابمب های مخصوص بحری برمیدارند ودارای دوانجن واسلحه مکمل تعرضی وتدافعی میباشند این طیارات نسبت به طیارهٔ معروف امریکائی موسوم به هدسن ؛ تیز تر سنگین تر ومؤثر تر بشمار میرود وبعد ازآنکه نتیجهٔ اجراآت خود را ملاحظه نمودسا لمانه به مراکز خود مراجعت می نماید . این طیاره از رادیو مجهز بوده وانجن هائی دارد که ۲۰۰۰ قوهٔ اسپ رامالك است ودراثر تعبیه های مهم تخنیکی ازسر یعتر ین طیارات بحری امریکا بشمار میرود . عملهٔ این طیاره عبارت است از چهار نفر . طول بالهای آن از یك انجام به انجام دیگر (٦ انچ ـ ٦٥) فت میباشد وازماشین گن های ثقیل مجهز گردیده وفاصلهٔ پرواز آنهم خیلی زیاد تخمین شده است .

## کشتی نجات



جدیداً برای نجات دادن عملهٔ فضائی ذریعهٔ سه عدد پاراشوت کشتی نجاتی را ازفضا بروی بحر می افگنند . این ابتکار برای حفظ آن اشخاصیکه مجبور میگردند طیاره را برفراز بحر ترك بدهند خیلی مفید ومؤثر ثابت شده است این اختراع جدید برای اولین مرتبه در ماه می ۱۹٤۳ وقتیکه بمب افگن ها لیفکس راه خود را پس بطرف برطانیه بعد ازعبور ۵۰ میل در بحر شمال طی کرده بودمورد استعمال واستفاده قرار داده شد .



## بمبی که ۸۰۰۰ پاو وزن دارد

درینصورت دو بمب راملاحظه میکنید که یکی به وزن ۵۰۰ پاو و دیگری دارای ۸۰۰۰ پاو وزن میباشد از نوع بمب ثانوی جدید که طیارات برطانیه المان را تحت بمبارمی قرار داده اند.

## شیشهٔ نجات دهندهٔ غریق

یکی از شرکت های شیشه سازی شهر پتسبرگ شیشهٔ اختراع نموده است که آنرا به اسم فوم گلاس (Foamglass) یعنی شیشهٔ آب بازیاد میکنند چه این شیشه استعمال کنندهٔ خودرا از خطر غرق شدن نجات میدهد وعلت آن اینست که وزن شیشه مذکور $\frac{1}{15}$ وزن شیشهٔ معمولی میباشد این شیشه ازخلایای زیادی تالیف شده که درآن هوا داخل نشده وآب آنرا بخود غرق نمی نماید . استعمال این آله البته برای نجات مغروقین واسطهٔ مهمه بوده ودر زورق ها ازآن کار میگیرند . طوریکه اولاً نان راخمیر مینمایند این شیشه راهم اولاً همانطور درست میکنند خمیرهٔ آن عبارت ازیك مقدار کاربن صاف است که بامادهٔ ممزوج شده ودراثنای گرم نمودن از آن بخارهائی متصاعد میشود وبذریعهٔ این بخارها در بین شیشه سوراخ ها تشکیل می یابد . ازین شیشه در ساختن پل ها وغیره هم کار میگیرند بر علاوه این شیشه مانع دخول حرارت به مواضع سرد میکردد لذا در مصانع شیر و مشتقات آن از مادهٔ مذکور خیلی استفاده مینمایند .

## تارهای شیشهٔ درجراحی

یك شرکت دیگری ازشرکت های شیشه سازی امریکا برای دوختن جراحت ها تارهای شیشه ایجاد نموده است . چه طوریکه میگویند تارهای ابریشمی ویارودهٔ گوسفند واسپ وغیره بعضاً مصدر تعفن جراحت میگردد . بر علاوه به تارهای فولادی ونقرهٔ جهت دوختن

جراحات استخوانها وغیره بعضاً اعتراضاتی بعمل می آید ولی در مقابل تار های شیشهٔ هیچ اعتراض صورت نمیگیرد چه این تارها از مواد عضوی مرکب نبوده و به مؤثرات کیمیاوی متأثر نمیشود. در استعمال این تارها نه تعفن بروی کار می آید و نه تهیج جلدی بملاحظه میرسد و همچنان دوختن جراحت باین تار نسبت به ابریشم متین‌تر صورت میگیرد هر تار شیشه از ۲۰۴ فتیله تکون یافته که چشم در اثر باریکی آنها تارهای مذکور را بخوبی دیده نمیتواند چه کلفتی هر کدام آن از $\frac{۲۲}{۱۰۰۰۰۰}$ حصه انچ بیشتر نمیباشد .

## مگنیزیوم از آب بحر

مگنیزیوم دو ثلث وزن الومینیوم را دارا بوده و سنگینی آن چارم حصهٔ وزن فولاد دانسته میشود در ۱۹۱۵ یك رطل آن به ۵ دالر خریداری میشد وحالانکه در عمارات وغیره از ان کمتر کار میگرفتند مگر امروز با وجودیکه مورد استعمال زیادی دارد ودر صنعت طیاره هم از آن بسا استفاده ها میگیرند معهذا نسبت به سابق ارزانتر تمام میشود . فعلاً در اثر تجارب وتحقیقات کیمیاوی خودها در تحصیل مگنیزیوم به مشقت گرفتار نمیشوند چه یك منبع فراوان قدرتی را برای استحصال آن کشف کرده اند . این منبع عبارت است از آب بحر که بذریعهٔ اسلوب کیمیاوی عجیب وجدیدی از آن مگنیزیوم استخراج می نمایند روزانه به اندازهٔ ۳۰۰ ملیون گیلن آب بحر را دریك آلهٔ مخصوصی داخل نموده وبواسطهٔ عملیات مخصوصه ازین آب بحر جز عنصر مگنیزیوم وبروم چیز دیگری خارج نمیشود وآنهم ذریعهٔ عملیات ترسیب صورت میگیرد ممکن اگر ساحهٔ عملیات توسعه حاصل کند دیگر مواد وعناصر هم از آب بحر بدست می آرند .

## گل و مهتاب

مجلهٔ ( گل ها ) راجع بیك نوع گل عجیبی چنین تشریحات داده است. در ربع اول واخیر وجوه قمر درین نبات گل رو به تکثر میگذارد ودر وقتیکه قمر بصورت هلال ویا بدر درمی آید نبات مذکور کاملاً از گل مجرد میگردد این نبات اصلاً از افریقای جنوبی بوده واز خانوادهٔ زنبق بشمار میرود ونام علمی آن ( موریا اریدایدس Morea iridoides) است. یکی از علمای روحیات کلیفورنیا به اسم نلاپ این خاصیت را در گل مذکور وقتی کشف کرد که به غوامض عقل وخفایای نفس بشر مصروف بوده ودر نتیجه به کشف این مسئله موفق گردید .

## شیشهٔ محکم

اخیراً از مواد کیمیاوی چنان شیشهٔ اختراع نموده اند. که اگر بمبی بوزن ۱۵۰ پاو وبفاصلهٔ ۸ فت در نزدیکی آن انفلاق نماید وپارچه های آن باین شیشه اصابت نماید آنرا شکستانده نخواهد توانست .

## زهر گژدم

در اثر تجارب جدیده چنین کشف شده که عقرب‌ها خودشان را در اثر زهر خود کشته نمیتوانند چه اجساد آن‌ها طبیعةً بمقابل این زهر مقاومت میتواند.

## عاج ومواد کیمیاوی

در تجارت و صنعت احتیاج مردم به عاج فزونتر گردیده و در عین حال قدرت جهت تربیهٔ فیل برای بدست آوردن عاج آن نداشتند لذا درصدد برآمدند تا مصدر جدیدی ازین رهگذر بدست آورند ازروی تجربه‌های علمی چنین ثابت نموده‌اند که مصدر اساسی عاج فیل نبوده بل موادیست که فیل آنرا تناول میکند وفیل گویا برای تولید آن حیثیت کیمیاخانهٔ طبیعی دارد که گیاها ومواد را در داخل وجود خود به عاج تحول میدهد لذا مخترعین وموجدین در اطراف این موضوع فکر کرده وبالاخره بجهت استخراج عاج مصنوعی موفقیت حاصل کردند.

## رادیوی مصور یاتلویزیون لیلیه

درین اواخر راجع به استخدام آله های رؤیت از مکان دور یا رادیوی مصور یا تلویزیون حربی سخن های زیادی شنیده می شود و دول محارب می خواهند باین ذرائع و وسائل اهداف خود را خوب تحت تعرض قرار داده و حرکت دشمنان را تعقیب نمایند لذا هردولت راجع به این آله واستفاده از آن اشتیاق وهوس مخصوصی از خود نشان میدهد در ۱۹۴۰ راجع به این موضوع چنین گفته شد که مهندسین شرکت دومون میدانهای جنگ عساکر ولایات متحدهٔ امریکا راملاحظه نمودند وآله که بذریعهٔ آن میدانهای مذکور را نگریستند عبارت از جهازی بود که مناظر را ازدور نشان میداد این آله عبارت از آله های مصوره‌ایست که پوشیده ازچشم رقبا درخطوط میدان های جنگ آن را نصب نموده بودند وضباط وعساکری که در مرکز قوماندانی بودند تمام ساحهٔ قتال رابذریعهٔ آن مشاهده میتوانستند ازین آله درروز وشب ودر وقت ابرو غبار میتوانند استفاده کنند وباین آلهٔ جدید که شاخهٔ ازفروع تلویزیون است اسم نوکتو ویزیون (Noctovision) یا تلویزیون لیلیه نام نهاده‌اند امروز ازین آله در طیاره های بمب افگن و کشفیاتی و میدانهای فضائی وغیره هم کار میگیرند.

## تعیین ودرجه‌بندی خونهای حیوانات

تحقیقات وتتبعاتی که در گروپ هاوانواع خون حیوانات درموسسهٔ (امپیریل وتیریتری واقع ایزاتناگر) صورت گرفته است دارای اهمیت علمی زیاد بوده ومخصوصاً تاثیر تحقیقات و کشفیات

آنها در تربیهٔ انواع بهتر حیوانات خیلی مفید و مؤثر ثابت شده است در اکتشافات جدیدهٔ آنها چیزیکه بیش از همه قابلیت تذکر را دارد عبارت ازینست که خون مذکور قابلیت تزریق را در وجود انسان داشته و برعلاوه ازان عناصری را میتوان بدست آورد که در خون انسان ازان استفاده های زیادی نمود اگر این نظریه و کشف جدید آنها بیشتر صورت عمل بخود بگیرد و عمومیت یابد البته در آنصورت مشکل تهیهٔ خون برای انسانهای مجروح و مصیبت دیدهٔ جنگ مخصوصاً درینوقت بخوبی رفع شده و در نتیجه در تشکیلات بانکهای خون تغیرات و توسعهٔ زیادی صورت خواهد گرفت. نوت و یادداشتیکه جدیداً درین خصوص بمنصهٔ اشاعه گذارده شده است نشان میدهد که در خون اصناف انسان و حیوانات بالاخص در ذرات سرخ و آب آنها عناصری وجود دارد که یکی بالای دیگر تاثیرات انعکاسی تولید میکند مثلاً در خون یك صنف انسان ذراتی وجود دارد که در خون ذرات طبقهٔ دیگر انسان همان تاثیر فوق را وارد مینماید عین این وضعیت را در خون طبقات حیوانات میتوان ملاحظه نمود اما این تاثیر را در خون یك نوع و جنس طبقات متذکره نمیتوان نگریست از روی این اکتشاف نوع انسانی را میتوان بخوبی طبقه بندی نمود و همچنان امکان دارد که مسائل و موضوعات مشکل توراثت را باین طریق بخوبی حل کرد و عین همین وضعیت را به طبقات حیوانات هم میتوان تطبیق کرد.

## خشك کردن مواد غذائی



متخصصین باکترولوجی اضلاع متحدهٔ امریکا در ادارهٔ تجربه و امتحان مواد زراعتی مصروف خشك کردن البومین (سفیدی تخم) در یك اجاقی که بهترین ذریعهٔ خشك نمودن آن دانسته میشود میباشند امریکائی ها در اثنای سالهای اخیره بالاخص درین ایام جنگ پیشرفت های مهمی درین خصوص نموده اند در اثر قانون قرض و اجاره هزارها تن مواد غذائی خشك ساخته شده و برای استفادهٔ ممالك و عساکر به نقاط لازمه ارسال گردیده اند و بحر های دول متحده دائماً از میوه جات، سبزیجات و دیگر غذا های خشك شده با صول فنی استعمال می کردند.

خاوری ترمینځ پراته ویرغل وکړ . (پانتالاریا) دجوزا په (۲۰) او (لامپدوسا) د جوزا په (۲۳) ونیول شوه او دسرطان په (۱۷) دمتحدینو معظم قوا دسسلی دجزیرې په جنوبی او غربی برخو کښې په خوځایو نو کښې کښته شول دلته هم دمحور مقاومت لږو ځکه چه د ایتالیا دسواحلو استحکامات خوراناو خته شروع شوي و . دمتحدینو دقواؤ په مقابل کښې صرف المانیانو کلک مقاومت کاوه لیکن ددوی تعداد هم لږو - بیا هم دوی دسسلی په شرق کښې د(کتانیا) دبندر پرسر او دسسلی په مرکزی برخه کښې چه د«اتنا» کو هستان یادیږی او په پای کښې ئې په شمال شرقی برخه کښې د(مسینا) دبندر پر شاوخوا کښې خورا سخت جنګونه وکړه په دې ضمن کښې په ایطالیا کښې د (موسولینی) دعزل او د (بادولیو) ددوی کار کیدلو واقعات پیښ شوه چه هغو هم دسسلی دجنګ په ختمیدو کښې ډېر تاثیر واچاوه او د ایطالوی دعسکرو زړونه مات شول . دارنګه دسسلی جنګونو داسد په (۲۵) خاتمه ومونده او دالمان باقیمانده عسکرو دمسینا د تنګی څخه ځانونه وایطالیاته ورسول

دسسلی په جنګو کښې دمتحدینو فضائی قوې هم ډېر فوقیت ومونداو په جګړ و کښې ئې خورا زیات تاثیر دراود، دسسلی دجنګو دخاتمې څخه وروسته په (۱۰) دسنبلی دمتحدینو قوا دایطالیا په جنوب د کالابریا په ولایت کښې هم پیاده شول او دلته هم جنګونه خوراسست ؤ ځکه چه ایطالویانو جنګ ته میل نه درلود او دالمانیانو شمیر لږو پس له هغه څخه چه دمتحدینو قواؤ د(ریجیو) او د (تارنتو) بندرونه ونیول (دسنبلی په ۱۳)دایطالیا مصالحه پیښه شوه د (سنبلی په ۱۵) او ایطالوی عسکر اسلحه کېښوده او المانیان هم مجبور شول چه عقب نشینی وکړی . دمتحدینو قواچه په دوو اردوګانو داتم لمبر او دپنځم لمبر په نامه سره تفریق شوي وا وپه امرې اردو کښې انګریز انو او په دوهم کښې امریکائیانو اکثریت دراود، دایطالیا دجنوب څخه ئې دشمال خواته په وړاندې تګ شروع وکړه اتم لمبر اوردو د شرقی ساحل په امتداد روان شو اود (فوجیا) بندر ئې و نیو او پنځم لمبر فوځ دغربی ساحل په اوږ دوالی په پرمخ تګ پیل وکړ اودا فوځ ددې دپاره چه دالمانیانو مقاومت دایطالیا په جنوب کښې ژر ترژره مات کړی فیصله وکړه چه خپل محاذتر (ناپل) پورې پرمخ یوسی نو ځکه دسنبلی په (۱۷) دپنځم لمبر فوج څودستی د سالرنو په بندر کښې کښته شوی اودالمانیانو سره ئې جنګ شروع کړ ۰ اګر که په اول کښې دد وی و ضعیت بحرانی ؤ او تلفات ئې هم ډېر ورکړی و مګر اتم لمبر فوځ په ډېر ګړندی توب سره خپل ځان ودوی ته ورساوه اوالمانیان مجبور شول چه خپل موقعیتونه پرېږدی اوتر(ناپل ) پورې عقب نشینی وکړی دارنګه جنوبی ایطالیا دمتحدینو لاس ته راغله اود ناپل بندرهم دمیزان په (۷) سقوط وکړ . دبلی خواد متحدینو قواوی د (ساردینیا) جزیره بی له جنګه و نیوه او د کورس په جزیره ئې چه امری دفرانس دمقبوضاتو څخه وه اوهغه وخت چه د متحدینو قوا په شمالی افریقا کښې کښته شوی و دایطالیا دخوا نیول شوی وه دمیزان په اولو ورځو کښې

حمله و کړه او په ۱۲ د دغه میاشت ئې هغه جزیره هم د فرانسویانو په مرسته و نیوله لیکن د(دودیکانیز) جزیره چه د ایطالوی مستملکانو څخه وه اودتر کښي دساحل په نزدی واقع وه او لېږی د انګریزانو دخوا واخستل شوه وروسته دمیزان اود عقرب په میاشت کښي دمتحدینو دخوا بېرته ونیول شوه وروسته نزدی د المان مقاومت په ایطالیا کښي خورا کلک شو مارشال (کسل رینګ) دالمان قوماندان خپلو قواوته د(اپنائن) په غره کښي اود (کاریلیانو) او (سانګرو) دسیندو په شاوخوا کښي په ښه صورت موقع ورکړه اوشدید جنګونه شروع شوه (عقرب) دبلی خوا ژمی هم نزدی شو اوپه اکثرو برخو خصوصاً داتم امرِ اردو په منطقه کښي جګړه معطله شوه . د قوس په میاشت کښي د متحدینو پنځم امر قوا

د کنا تینو وښارته چه د(ګوستاف) دستحکاماتو په خط پروت دی ورسیده اودلته شدید جنګونه پېښ شول ـ متحدینو ډېر کوښښو نه وکړه چه هغه خط مات کړی او د کاسینو کوهستا نی ښار ونیسی لیکن دالمانیانو مقاومت کلک واو په دری میاشتو کښي هم ددی ښار په کوڅو کښي جنګ فیصله نه شو ـ په دی ضمن کښي دمتحدینو قوماندانی فیصله وکړه چه بیا لکه چه په (سالرنو) کښي ئې کړی وخپل محاذ پورته یوسی اودروم جنوب ته ځان ورسوی اوپه عین زمان کښي د کوهستانی منطقې څخه ځان خلا ص کړی په دی مقصد کښي دپنځم اردو قوځونه د(داو ) په(دوم)دروم په ۲۵میلی کښي د(انسیو) په منطقه کښي پیاده شوه اوخوورځی دجدی مقاومت سره مقامخ نشوه لکن وروسته چه مارشال ( کسل رینګ) خپل قوا په دی منطقه کښي په کاروا چول وضعیت تبدیل وه وناساو دمتحدینو پیشرفت دروم وخواته معطل او بالمقابل دوی دخو خواو دمحور دخوا محاصره شول او که چیری دمتحدینو فضائی قوت نه وای نوتراوسه پوری به داعسکر تلف شوی وای . بیاهم ددی کال ترآخره پوری داعسکر ملته دمحاصری په حالت باقی پاته شو اونور څه فعالیت ددوی دلاسه ونه شو منکر بیانی هم دالمان دزیاتی قوی په مقابل کښي ښه مقاومت ښکاره کړ او د المان مکررو حملوته ئې په شدت سره ځواب ورکړ. دنوی کال ۱۳۲۳ په سر کښي بیاهم دایطالیا دمحاذو وضعیت هغسې ؤ لکه چه په تیر ژمی کښي و . یعنی دواړو خواو په ډېری سختی یو پر بل باندی حملې کولی لیکن بیاهم قطعی کامیابی یوی خواته نه وه ـ دشمالی محاذ ( دانسیو په جبهه کښي ) متحدینو په یوه محدوده رقبه کښي دفاعی وضعیت درلود اوپه اساسی جبهه کښي چه د (کاسینو) دمحاذ په نامه سره یادیږی المانیان په دفاعی حالت کښي ؤ او متحدینو د( کاسینو ) پرښار باندی مکررې حملی کولی . نظامی مبصرین وائی که څه هم متحدین خورا ډېر قوا په ایطالیا کښي جمع کوی ( د متحدینو قواوی د ۱۳۲۲ په پای کښي په ټوله ایطالیا کښي ۲۰ فرقی او د محور ۲۵ فرقی تخمین شوی وې) بیاهم ددوی پیشرفت په ایطالیا کښي خو رابطی دی ځکه چه المان په جدیت سره

# دمتحدینو قوماندانان داروپا په محاذو کښې



جنرال آیزن‌هاور دمتحدینو دقواو
عمومي قوماندان د اروپا په غربي
محاذ کښې



جنرال مونت گمری د متحدینو
د قواو قوماندان د فرانسې
په محاذ کښې



جنرال ولسن دمتحدینو دټولو قواو
قوماندان دمدیترانې په حوزه کښې



جنرال الکزاندر د متحدینو د قواو
قوماندان دایطالیا په جبهو کښې

# دانګلستان او د ترکیې په واقعاتو پورې مربوط



عصمت اینونو د ترکیې رئیس جمهور او چرچل د برطانیې صدراعظم د «ادانا» په کنفرانس کښې
(دد واړو ترمینځ سراج اوغلو د ترکیې صدراعظم)



فیلډ مارشال وایکونټ لارد واول
دهندوستان نوی نایب السلطنه چه
په تیر کال کښې په دې عهده مقرر شو



ادمیرال لارډ لوئیس مونټ بیټن د متحدینو
د ټولو قواو قوماندان د آسیا د جنوب
شرق په حوزه کښې

دایطالیا دمدافعې ترتیبات نیولي دي او پرهره‌ټوټه مځکه شدید جنګونه کوي د مدیترانې په بحري اوفضائي جنګونو کښې هم په دې کال متحدینو فوقیت پیدا کړی وخصوصاً پس له هغه څخه چه دایطالیا ډېرو خپل ځان متحدینوته تسلیم کړ ( د تسلیم شوو جنګي بېړیو شمېر تر ۲۰ زیات دی ) دمدیترانې په‌حوزه کښې دمتحدینو بحري وضعیت ‌ خوراصلاح ومونده‌او اوس تقریباً په دغه‌حوزه کښې‌دوی رقیب‌نلري، صرف دایجین په‌بحیره‌او‌دیونان‌دجزایرو په‌منطقه کښې اودفرانسې‌دجنوب‌سواحلوته نژدې‌المانی بېړیو څه نه‌څه فعالیت اونفوذدرلود.

په‌دې ضمن کښې‌چه‌په‌ایطالیا کښې‌جنګ‌جاري و، په‌یوګوسلاویا کښې هم‌هغو انقلابیو نوچه یوګوسلاویا دنیولوڅخه‌ئې وروسته‌دهغه مملکت‌په کوهستاني ځایونو کښې دالمان په مقابل کښې مقاومت کاوه جرئت‌پیدا کړ اودالمان‌دپاره ئې‌خورا ډېرمشکلات مینځ‌ته راوستل اودې کال په‌پای کښې ۱۴-المانی فرقې‌دهغوی په‌مقابله کښې‌خصوصاً د بوسینا په‌ولایت‌اوادریاتیک‌وساحل‌ته نژدې‌بوختې‌وې اومتحدینوهم دایطالیادلارې اوادریاتیک د بحیرې په‌ذریعه هغوی سره ارتباط قایم کړ اوطیارې اونورحربی شیان‌ئې ورته استولي دي اواستوي‌یې لیکن‌په‌دغه منطقه کښې یوبل یوګوسلاوی‌جنرال چه‌تیتو نومیږي دجنرال میخائیلوویچ په‌رقابت‌سره جګ‌شو اومتحدینو هم هغه ته ترجیح، ور کړه.

## د اروپا غربی محاذ :—

داروپا په‌غربی‌سرحد و په‌دې کال کښې هم‌دوهمه جبهه‌چه‌د ۱۹۴۳ راهیسې دمتحد ینوتر نظرلاندې‌وه تشکیل‌نشوه لیکن ترتیبات ئې‌په‌خورا شدت‌اوچابکی سره‌نیول شوي اوالمانیان‌هم په‌خپل‌نوبت سره‌داروپاپه غربی‌اوشمالی حتی‌په‌جنوبی‌ساحل کښې‌ټینګ استحکامات‌جوړ کړي دي چه د ۱۳۲۲ په آخر کښې د المان د حکومت د رسمی اعلان‌په‌قرار تمام شوي‌او اوس‌دهر رازیرغل دمقابلې کولو دپاره‌حاضردي دمتحدینو دبیاناتو اوهم‌د المانیانو دنشریاتوڅخه داسې معلومیږي‌چه هره‌روغ امکان‌لري‌چه دامحاذ تشکیل‌شي مګر تراوسه پوري‌هیڅوك نه‌شي ویلای چه‌دامحاذ به‌څه‌وخت اوپه کم‌ځای کښې تشکیل‌شي.

په‌هر صورت چه‌وي‌په‌دې کال کښې فضائي فعالیت په‌دې‌محاذ کښې ډېرشدت کړی دی خصوصاً دمتحدینو بمباری دالمان پرښاروااو متصرفه خاورو خورازیاته شوې‌ده اوتقریباً په ۲۴ ساعتو کښې بې‌له‌وقفې دهغوی‌طیارات په‌المانی‌مځکو باندې‌الوتنه اوبمباري کوي دابمباري‌دیوی معینې‌نقشې په‌قرار اجراء کیږي دالمان ټول صنعتي ښارونه‌چه په‌هغه کښې برلین‌هم خورامهم موقعیت‌لري اوهمدارنګه دالمان په‌متصرفاتو کښې‌ئې صنعتي‌او حربی بندرونه اونور حیاتي موقعیتونه احتوا کړي‌دي. د ۱۳۲۲ په آخر کښې په‌یوه‌شپه پریوه‌نخښه تر ۲۵۰۰ ټنوزیات بمونه اچول‌شوي اوپه‌دې بمباری کښې‌ترزرو زیاتوالوتکوبرخه‌اخستې ده‌دبلې‌خوا دالمان ضدفضائي

ترتیباتو هم خوراوفت او وسعت موندلی او په یوه شپه کښې ئې تر ۹۴ ـ الوتکو (د متحدینو په تصدیق سره) په مځکه اچولی دی چه په سل کښې تقریباً اتیا کیږی سربیره له هغه المانیانو هم خپل فضائی حملات برلندن باندی تجدید کړی او د ۱۳۲۲ په ژمی کښې ئې تقریباً هره شپه پر لندن او د مشرقی او جنوبی انګلستان په نورو صنعتی ښارونو او بندرونو مرتبې حملی او بمباری کړی دی مګر د دوی د طیارو تعداد لږ او د بمباری مقدار هم محدود دی (په یوه شپه په لندن کښې المانیانو ۶۰۰ ټنه بمونه اچولی دی حالانکه متحدینو په یوه شپه په برلین تر ۲۵۰۰ ټنو زیات بمونه غورزولی دی).

دا بمباری روځ په روځ شدت کوی او لکه چه المانی مسئول مامورین وائی خورا ډیری خرابی ئې کړی دی امکان لری چه د متحدینو دبمباری شدت تر دی هم زیات شی ځکه چه متحدین فکر لری چه هرڅه چه بمباری زیاته شی هغومره د المان مقاومت کمیږی او د حملی د پاره زمینه آسانیږی.

## د اروپا شرقی محاذ:

په دی کال کښې د روس او المان جنګ یو فیصله کوونکی ځای ته رسیدلی دی پس له هغه چه د ۱۳۲۱ په پای کښې المانیان په ستالینګراد کښې ماتشوه بیا دوی کم بری نه دی کړی حتی د پسرلی په وخت کښې هم چه هر کال د المان د نوی حملی موقع وه، روسیانو دی ته فرصت ورنکړ چه د مدافعی څخه وحملی ته تیار شی بلکه په پسرلی او دوبی کښې هم د روسانو حملاتو دوام درلوداو ډیر مهم موفقیتونه او موفقیتونه ددوی و. د حمل په میاشت کښې روسانو د لیننګراد په منطقه کښې په حمله پیل وکړ او د ثور په میاشت کښې ئې د نه لوی ښار و روسته تر یو نیم کال محاصری خلاص کړ په عین زمان کښې روسیانو په شمالی قفقاز کښې هم خپلو حملو ته دوام ورکړ او د نوفر روسک او د تامان بندرونه ئې ونیول (پسرلی او دوبی ۱۳۲۲) او المانیانو د شمالی او غربی کوبان په منطقه کښې عقب نشینی وکړه د بلی خوا د مسکو په محاذ کښې د روسانو حملی شدت وموند او د اسد په میاشت کښې (اوریل) او د میزان په میاشت کښې (سمولنسک) د المانیانو څخه مسترد شوه. داو کرائن په محاذ کښې هم روسانو حربی ابتکار ونیوداو د اسد په میاشت کښې (وروشیلوف ګراد) او (خارکوف) او (پولتاوا) او په عقرب کښې ئې (کیف) ونیو په جنوبی محاذ کښې هم روسیانو خپل فشار زیات کړ چه په هغه اثر کښې د سنبلی او د عقرب په میاشت کښې د (تګان روګ) بندر او د (ستالینو) او (ملتوپول) ښار ددوی لاس ته راغله په دغه صورت المانیان د غربی خوا څخه د (دنیپر) د سیند و خواته تر شا شول د دی آخری موفقیتونه په دی برخه کښې «کومل» او (پولتاوا) و، چه لمړی ښار تر ژمی پوری مقاومت ته دوام ورکړ او پولتاوا په منی کښې سقوط وکړ. د دنیپر جنګ د ژمی په سر شروع شو لمړی (دنیپروپتروفسک) ښار روسانو ته تسلیم شو او روسان په دی ذریعه د دنیپر د سیند په بورتنی حصه کښې تیر شول. په دی وخت کښې د روسانو حملو عمومیت وموند. په شمالی محاذ کښې دوی د لیننګراد او د مسکو په مینځ کښې په یرغل پیل وکړ په هر کړی برخه کښې په سپین روسیه کښې داخل شول او د (ویتبسک) و خواته ئې پرمخ تګ، و کړ د نیپر په کمانی کښې هم د المانیانو په استحکاماتو

کښې رخنه واچوله او المانیان د کوبان ښخه ووتل (دمنۍ په میاشت کښې) د جدي په ١٣ کښې شوروي عسکر د سپین روس په جنوبي برخه کښې د پولینډ په ١٩٣٩ سرحداتو کښې داخل شوه . او په دلو کښې د (چرکاسي) په غرب او د (کري واي روګ) په شمال کښې لس الماني فرقې محاصره و نیول شوې چه د دلو تر نیمائي پورې محاصره وه . او وروسته یوې برخې ئې ځان له محاصرې ښخه خلاص کړ او باقي ئې تلف شول او پس له څو ورځو د دنیپر په پیچم کښې د المان آخرنی مرکز (کري وو اي روګ) هم د روسانو لاس ته ورغی او دا د روس د وروستنو جنګونو شروع وه ځکه چه د جدي په آخر کښې روسانو د لیننګراد په جنوب او د سپین روس په شمالي برخه کښې په فیصله کوونکې حمله شروع وکړه او دا برخه ئې بیخي د المانیانو د ورده ښخه پاکه کړه . د دلو په میاشت کښې د المان د مقاومت مهم مرکز چه (لوګا) و . روسانو تسلیم شو او د دلو په میاشت کښې د استونیا په خاوره کښې داخل شوه . وروسته تردې د روسیانو کوشش تول ودې ته متوجه شو چه المانیان د خپلې خاورې ښخه بیخي وباسي د دې مقصد د پاره دوی په دریو برخو کښې په تعرضي عملیات پیل وکړل مرې د شمالي محاذه ښخه د لتونیا د سرحدو خواته چه د کال په پای کښې د (پسکوف) ښار ته چه استونیا او د لتونیا (لتویا) په سرحد کښې پروت دی ورسیدل ، په مرکزي محاذ داو کړاین په شمال او د سپین روس په جنوب کښې د دوی په مخ تګ د پولینډ په خاوره کښې او همدارنګه د (بوګ) د سیند و خواته چه د رومانیا د ١٩٤٠ سرحد دی دوام درلود او د کال په پای (پروت) کښې د روس عسکر د بوګ ښخه تیر شوی او د (بساربیا) او د (بوکووینا) په ولایتو کښې ننوتل او همدارنګه د روسانو نورو عسکرو د جنوبي پولینډ په لاره خپل ځان د (کارپات) وغرو ته چه د چکوسلواکي د پخواني سرحداتو سره تماس لري نژدې کړ ، په جنوبي محاذ کښې د کال په آخرو ورځو کښې روسانو د المانیانو وروستني مقاومت په جنوبي او کراین او د دنیپر په (دلتا) کښې مات کړ او د (نیکولایف) او (خرسون) بندرونه ئې ونیول او د (اودیسې) د بندر و خواته ئې چه د المان آخري بندر په دې منطقه کښې دی وړاندې تګ وکړ (دا بندر هم د ١٣٢٣ کال د حمل په ١٥ سقوط وکړ) .

د کال په پای کښې د المان قوا په روسیه کښې صرف په دې خو لاندینیو ځایو کښې پاتې دي چه هغوی هم د حربي نقشې سره سم خپلې منظمې عقب نشینۍ ته دوام ور کوي . د سپین روس په جبهه کښې د (ویتبسک) او د (منسک) په شاوخوا کښې په جنوبي برخه د (اودیسې) په اطرافو کښې د کریمیا په شبه جزیره کښې .

د بلې خوا د ١٣٢٣ په اول نیوروځو کښې د روس قواو (پروت) د سیند ښخه هم تیرشوی او ځان ئې د چکوسلواکي د ١٩٣٨ و سرحداتو ته رسولی دی همدارنګه (اودیسې) ښار ئې نیولی او د (دنیستر) تر سیند ښخه تیرشوی دی او د بلې خوا ئې د کریمیا اکثره برخه نیولې او د المانیانو قسما کړ په (سباستوپول) کښې محاصره شوي دي .

په دې صورت سره ویلای شو چه د روسیې جنګ خپلې خاتمې ته نژدې شوی او اوژر به د روس خاورې د المانیانو د لاسه بیخي واوزي او د المان هغه پلان چه څلور کاله د مخه ئې د روس د نیولو او د شوروي حکومت د سقوط ور کولو د پاره جوړ کړی و په قطعي طور سره نا کام شو او اوس المانیان په خپله په خپلو متصرفه او اصلي خاورو کښې د روسانو د هجوم تر تهدید لاندې راغلي دي چه په آینده کال کښې به ئې نتیجې ښکاره شي .

## د شرق اقصی محاذونه :

په شرق اقصی کښې هم حربي محاذات ډېر او مختلف دي چه تر دې څو عنوانو لاندې خلاصه کېږي: د چین محاذ ـ د برما او هند محاذ ـ د بحرالکاهل د جنوب غرب محاذ چه بیا په هر یوه کښې څو محاذونه شته .

۱: د چین په محاذ کښې په دې کال کښې کم مهم تغیر نه دی پېښ شوی ـ د میزان په میاشت کښې جاپانیانو کوشش وکړ چه د هونې په ایالت کښې (د چانګتې) ښار او د (چانګشا) بندر چه د چین په جنوبي برخه کښې دي ونیسي او چونګ کنګ ته خو ته لار پیدا کړي لیکن دا اقدام د چینیانو د شدیدې مقابلې سره مخامخ او په پای کښې نا کام ثابت شو او د چانګتې ښار چه د عقرب په اوائلو کښې د جاپانیانو په لاس ور غلی و د عقرب په اواسطو کښې بېرته د چینیانو لاس ته ورغی تر دې ورو سته په چین کښې کم مهم عملیات نه دي اجرا شوي .

د برما او هند په محاذاتو کښې په ۱۳۲۲ کال څو واره اخوا دې خوا پېښ شوې. لمړی انګریزانو د کال په سر (حمل) کښې دارا کان په دره چه د برما په جنوبي برخه کښې پرته ده په حرکت شروع وکړه لیکن هر کله چه د باران موسم ور سید او جاپانیانو هم متقابلې حملې وکړې دا عملیات معطل شوه بیا چه د برسات فصل تېر شو خوا کتشافي عملیات له دواړو خواؤ څخه اجرا شوه مګر اساسي جنګ ئې نه درلود دغه خو په عین زمان کښې چه د منې په موسم کښې متحدینو فیصله وکړه چه یوه نوې قوماندانی د (جنوب شرق آسیا) په نامه سره د (لارډلوئي مونټ بیټن) تر اثر لاندې تشکیل او یوه مهم اردو د (څورلسمې اردو) تر عنوان لاندې د برما په سرحد کښې تشکیل کړی او په ۱۳۲۳ کال کښې د برما په شمالي برخه کښې په تعرضي عملیاتو پیل وکړی او د برما او چین په مینځ کښې رابطه قایم کړي، دې اقداماتو د جاپان تو جه ودې خوا ته جلب کړه خصوصاً هغه وخت چه چیني عسکرو د چین د جنوبي برخې له خوا او څورلسمې اردو د برما د شمالي حصې له لارې په حرکت پیل وکړ (حوت) په دې وخت کښې جاپانیانو هم په حرکت پیل وکړ د برما په منځنۍ برخه کښې ئې چه د (چن) د غره په ځنګلي درو کښې ده په تعرضي اقداماتو شروع وکړه او د (آسام) په علاقو کښې د (مانیپور) د ریاست په خاوره کښې ننوتل . انګریزانو د مخه تر د غو عملیاتو ددې د پاره چه د جاپانیانو توجه وبلې خوا ته وګرزوي د دلوی په میاشت کښې ئې د برما

په جنوب کښې د اراکان په جبهه کښې هم ځینې شدید عملیات وکړه او (بوتی دانګ) لې ونیو چه هلته جاپانیانو په شدت سره مقابله وکړې او دانګریزانو یوه فرقه ئې د (ناچداك) په دره کښې محاصره کړې وه لیکن انګریزانو خپل عسکر بېرته وکښل او بېرته خپل اصلي موقعیتونه و ګرځیدل (داو) لیکن دې پورتنیو عملیاتو چه د حوت آخرو ورځو کښې ئې جریان پیدا کړ د انګریزانو توجه خورا په شدت سره جلب کړه خصوصاً پس له هغه چه جاپانیان د (ایمپال) په میدان کښې ننوتلي دي او اوس ئې د آسام او د بنګال او سپي لار چه د چین د مرستي د پاره یگانه لار ده په خطر لاندې نیولې ده. بیاهم انګریزان فکر کوي چه دا عملیات د جاپان دخوا یو اساسي حمله بر هند باندې نه بلل کېږي بلکه دا عملیات صرف د دې د پاره دي چه د متحدینو هغه پلان چه د چینیانو سره د رابطې قائمولو د پاره دي ، باطل کړي - نو ځکه انګریزانو هم په ... زمان کښې خپل مارش ته د برما وشمالي خواته دوام ورکړی او چینی عساکر و ته چه د دوی ... روان دي ، سره نژدې کېږي حتی څو ټولګی پاراشوتي عسکر ئې هم په دې منطقه کښې د برما په خاوره کښې ښکته کړي دي چه زر تر زره د دواړو قواؤ په مینځ کښې رابطه قائمه کړي .

لکه چه نظامي مبصرین وائی جاپان په دې وخت کښې چه په بحرالکاهل کښې د امریکایانو په مقابل کښې په شدید و جګړو بوخت دی او د بلې خوا د المان وضعیت هم په اروپا کښې خراب معلومېږي ، اراده نه لري چه پر هند باندې هغه یرغل وکړي چه د ۱۳۲۱ په سر کښې ئې تصور کیده او هغه وخت انګریزانو ته هغې تیاری هم نه در لوده مګر اوس انګریزانو او امریکې خورا ډېره قوه هند ته راوستلې ده (داقوه یو ملیون کسه تخمین کېږي) او د بارانو موسم هم نژدې کېږي . نو ددې جهته داسې فکر کېږي چه د جاپانیانو مهم او اساسي مقصد دادی چه په دې موقع کښې چه د عملیاتو وخت دی ، د متحدینو پلان هم برهم کړي او د دوی ته موقع ورنکړي چه د چینیانو سره ارتباط قائم کړي .

د بحرالکاهل محاذونه :

هغه تعرضي عملیات چه امریکائیانو او آستریلیائیانو د ۱۳۲۱ په اواسطو کښې د استریلیا د جزائرو په شاوخوا کښې شروع کړي و په ۱۳۲۲ کال کښې ئې خورا ډېره وسعت پیدا کړی او هغه امرني مقصد چه امریکائیانو درلود چه باید آستریلیا د خطره وژغورل شي په دې کال کښې تکمیل شو- د دغو عملیاتو په ضمن کښې چه د تېر کال په مینځ کښې د سلیمان په جزائرو کښې شروع شوی و ، د سلیمان جزائر ټول د جاپان د لاسه ووتله هغه دارنګه په برطانوي نیوګینی کښې جاپانیان عقب نشیني ته مجبور شول (مونډا) د اسد په میاشت (لی) د سنبله په میاشت او (فنش هافن) د میزان په میاشت کښې د دوی د لاسه ووتله - او اوس په نیوګیني کښې صرف (مدانګ) پاته دی چه د متحدینو قواؤ پر هغه هم په یرغل بیل کړي دی. (دې مهم ښار و دتور

په اوائلو کښې سقوط و کړ) همدغه رنګه دعقرب په میاشت کښې امریکائي قواوی د (نیوبرتن) په جزیره باندی چه دجاپانیانو یو مهم مرکزو حمله و کړه او په عین زمان کښې دامریکا الوتکو پر (رابال) چه ددی جزیری مهم بندر او دجاپانیانو عمده هوائي مرکز دی ، شدیده بمباري و کړه چه د کال تر آخر پوری دغو بمباریو دوام و کړ او لکه چه متحدین وائي اوس جاپانیان د (رابال) څخه دفضائي مرکز په حیث کار نشوای اخستلای .

د کال په آخری برخه کښې امریکائیانو خپل تعرضي فعالیت لازیات کړی او دجاپان پر نورو متصرفه جزائرو کښې ئې هم په حمله پیل کړی دی ـ مثلاً ددلو په میاشت کښې امریکائي قواوی د (کرین) او د (گلبرت) په جزائرو او همدارنګه د (مارشال) په جزائرو چه دجاپان په حقیقي متصرفاتو کښې دی کښته شول او دحوت په میاشت کښې ئې د (ادمیرالتی) په جزائرو باندی هم یرغل و کړ همدارنګه هوائي حملات د (کارولین) دجزائرو په مقابل کښې مخصوصاً د (تروک) دهغې جزیری دمهم بحري او فضائي مرکز پرضد شروع شوه چه دنوی کال تر اوله پوری ئې دوام درلود امریکائیان غواړی چه ددی بمباریو په اثر دهغو جزائرو مقاومت مات کړی او وروسته تر هغه چه هوائي میدانونه او بحري مرکزونه ئې خراب شوه خپل عسکر بې له زحمته او تلفاتو څخه هلته کښته کړی ـ دانوی اقدامات ښکاره کوی چه اوس امریکائیان د تدافعي عملیاتو څخه فارغ شوی او غواړی چه خپل تعرضي اقدامات دجاپان تر خارجي حصار پوری پرمخ بوسی او دجاپان پر اصلي استحکاماتو باندی په حمله پیل و کړی .

دبلې خوا داهم معلومیږی چه امریکائیان غواړی چه ژر تر ژره ځان داسی ځای ته ورسوی چه دهغو ځایو څخه پر جاپان باندی هوائي حمله ممکنه وی نو ځکه جاپانیانو دخپلو مهمو ښارو په تخلیه شروع کړی ده نظامي مبصرین فکر کوی چه دامریکا قواوی به دبحرالکاهل په جنوب غربي حوزه کښې خوراژر ډیر استحکام پیدا کړی او په زیات قوت او شدت سره به پر جاپان نیولو جزایرو باندی یرغل شروع کړی او په ۱۳۲۳ کښې دیوی خوا پر فلیپائن باندی به حمله پیل و کړی او د بلې خوا به دجاپان هغه مواصلات چه دشرق الهند سره ئې لری بیخي قطع کړی په عین زمان کښې داهم باید هیره نشی چه د ۱۳۲۲ په اول کښې امریکائیانو جاپانیان د (الوشن) دجزایرو څخه چه دالاسکا (شمالي امریکا) په غرب کښې پراته دی او په ۱۳۲۱ کښې جاپانیانو نیولی وی اخراج کړی دی داحمله د ثور په میاشت کښې شروع او په اسد کښې ختم شوه او جاپانیانو پس له شدیدی مدافعې څخه هغه جزائر بیخي پریښوده امکان لری چه امریکائیان ددی جزائرو څخه هم سعی و کړی چه پر جاپان فضائي حمله شروع کړی .

همدارنګه د امریکا بحري قواوی په بحرالکاهل کښې په دی کال کښې خورا تینګوالی ښکاره کړی او جاپاني بحریه ئې مجبور کړی ده چه دجاپان په اصلي اوبو کښې عقب نشیني و کړی

# دمحور ددولتو په واقعاتو پوری مربوط



فیلډ مارشال رونشتت دالمان دقواو عمومی
قوماندان داروپا دغرب په محاذ کښې



مارشال رومل دالمان دقواوقوماندان
دفرانسی په محاذ کښې



مارشال کسلرینګ دالمان دهولو
قواوقوماندان دایطالیا په محاذ کښې



کونت چیانو دایطالیا پخوانی وزیر خارجه
چه د فاشیست د جمهوری حکومت
له خوا دملی خیانت په جرم اعدام شو

# د ایطالیا په واقعاتو پوری مربوط



دریم ویکتور ایمانویل دایطالیاپادشاه
چه سلطنت ئې خپل ځوی امبر تو ته
پر ښود



شهزاده امبرتو د ایطالیا دسلطنت
نوی قایم‌مقام



بینی‌تو موسولینی د ایطالیا پخوانی
صدراعظم او دفاشیست دموقتی جمهوری
حکومت رئیس



مارشال بادولیو د ایطالیا «مستعفی»
صدراعظم چه‌دموسولینی دسقوط
وروسته کابینه تشکیل او دمتحدینو
سره صلح و کړه

# دبالقان پهواقعاتو پوری مربوط



دوهم جارج دیونان شاه چه اعلان
وکړ چه دیونان د آینده حکومت
طرز به دیونان دملت په خوښه وی



ادمیرال هورتی دمجارستان نایب السلطنه
چه دالمان ددوستی په سیاست
مستقیم پاته شو



فیلوف د بلغاریا مستعفی صدراعظم
چه دبی طرفی د سیاست په اثر یې
کار پریښود



مارشال انتونسکو درومانیې رئیس-
الوزرا چه پخپل اتحاد کښې
له المان سره مستقیم پاته شو

# د جاپان او چین دواقعاتو پوری مربوط



مارشال چیانگ کای شیك دچین نوی رئیس جمهور
او د هغه خانم



جنرال هیوا کی توجو د جاپان
صدراعظم چه پدی کال کښې ئې
دجاپان مستملکاتو ته دآسیا په جنوب
شرق کښې مسافرت کړی دی



مامور و شیگی متسو د جاپان نوی
وزیر خارجه



کاز و ئو آؤ کی د جاپان د
«لوی شرقی آسیا» وزیر



د طهران د کنفرانس یوه منظره : مارشال ستالین ، فرانکلن روزولت ، اوونستن چرچل .



روز ولت دممتاز خدمت نشان د جنرال دولتل په‌سینه‌تومبی-دی د هغې
دستی قوماندان‌دی چه په تېر کال کښې‌ئې په‌توکیو بمونه‌غورځولی دی



توماس‌دیوی دنیویارك حاکم‌چه‌په‌او سنیو
انتخاباتو کښې دامریکا دریاست‌جمهور
د پاره یاد شویدی



ریتی رئیس جمهور او مارشال مینر هیم د فنلیند
د عساکرو اعلی قوماندان

په هغو بحري جنګونو کښې چه (بوګان ویل) په منطقه کښې او بیا (مارشال) په اوبو کښې واقع شوه امریکائیانو ثابت فتوحات و کړه بیا هم دواړو خواوته درانه تلفات ور رسیدلي دي .

٭ ٭ ٭

او سیاسي واقعاتو ته یو نظر اچوو :

<u>بین المللي کنفرانسونه :</u>

په دې کال کښې د متحدینو د خوا څو مهم کنفرانسونه منعقد شوي دي چه د جنګ د پرمخ بیولو په لار کښې خوراډېر تاثیر لري هم دارنګه د محور په کامپ کښې هم حربي او سیاسي کنفرانسونه جوړ شوي دي .

<u>د متحدینو کنفرانسونه :</u>

اومړی کنفرانس د ١٣٢٢ په سر کښې دا یمن اود لور دیل هل په مینځ کښې په واشنګټن کښې جوړ شو او د شمالي افریقا د جنګ د خاتمې د پاره پکښې مذاکرات وشوه (حمل ١٣٢٢) پس له هغه څخه چه د تونس جنګ فیصله شو او پر ایطالیا یرغل شروع شو چرچل بیاله واشنګټن ته ولاړ او هلته ئې د روزولت سره و کتل او خورو څي ئې هلته تیري کړې روزولت او چرچل سره فیصله و کړه چه ایطالیا سره بایدبې له بلاشرط تسلیم په نورو شرایطو مصالحه ونه شي (ثور، جوزا) . بیا د اسد په میاشت کښې چه موسولیني عزل او بادولیو د ایطالیا اختیار په لاس کښې ونیوه او د صلح د پاره ئې آماده ګي وکړه چرچل بیا واشنګټن ته ولاړ او هلته د ایطالیا د مصالحې په باره کښې او هم دارنګه د آینده عملیاتو د پاره خبرې اترې وشوې او دا هم فیصله شوه چه چرچل اور وزولت د ستالین او چیانګ کای شیک سره هم ووینې او د جنګ د ختمولو او بیا د صلح د زماني په شاوخوا کښې مذاکرې وکړې دوا شنګټن تر کنفرانسو وروسته چرچل او روزولت کاناداته ولاړل او هلته بیا (کیوبک) په کنفرانسو کښې په دې مسائلو باندې دوباره غور وشو (اسد) .

د دغو کنفرانسو په سلسله کښې ژر فیصله شو چه د متحدینو د زمامدارانو مقدماتي کنفرانس په مسکو کښې جوړ شي او دا کنفرانس چه د انګلستان او د امریکا خارجه وزیران به پکښې شامل وي د هغه بل کنفرانس چه د چرچل او روزولت او ستالین په مینځ تشکیل کیدونکی دی زمینه آماده کړي دا کنفرانس د میزان په آخر کښې په مسکو کښې تشکیل شو او په هغه کښې د مولوتوف او د ستالین په حضور د اروپا د آینده تشکیلاتو په باره کښې مذاکره وشوه او د انګلستان خارجه وزیر هغه وخت چه د مسکو څخه انګلستان ته مراجعت کاوه په قاهره کښې ئې د ترکې د خارجه وزیر سره هم ملاقات او مقدماتي مذاکرات و کړه پس له هغه څخه چه ایډن لندن ته او کورډیل هل امریکاته مراجعت و کړ د قاهره او د طهران د کنفرانسو د جوړولو د پاره فیصله وشوه او ژر چرچل او ر وزولت د خپلو پایتختو څخه رهي شول او په قاهره کښې ئې

دچیانګک کای شیك سره چه هغه هم دهند په لار قاهری ته راغلی و وکتل او د شرق اقصی دجنګک په باره کښې ئې دهغه سره مذاکره وکړه وروسته له هغه چرچل او روزولت طهران ته راغلل حالانکه چیانګک کای شیك خپل مملکت ته مراجعت وکړ په طهران کښې ستالین هم سره له مولوتوف او مارشال ورو شیلوف راغلی و دلته دد رو ورځو کنفرانسونه منعقد شوه اومهم تصمیمات دجنګک دپیشرفت دپاره اوهمدارنګه دصلح دمسائلو په باره کښې ونیول شوه (قوس) پس له هغه څخه روزولت اوچرچل بیرته قاهری ته راغلل او دلته ئې دعصمت اینونو د ترکیې رئیس جمهور سره وکتل او د ترکیې او دمتحدینو دزیاتی مرستی په شاوخوا کښې ئې بحثونه وکړه دا څو کنفرانسونه چه مو شرح ورکړه هغه سیاسی او حربی کنفرانسونه و چه دجنګک د پرمختګک په باره کښې دمتحدینو دواکوالانو په مینځ کښې منعقد شوی و لیکن سربیره له هغو څخه نور کنفرانسونه هم دمتحدینو تر اثر لاندی قایم شوی دی چه ځانته خصوصی مقصد او غرض ئې دراود مثلاً غذائی کنفرانس چه د (هات سپرنګک) په منطقه کښې (په امریکای شمالی) په جوزا کښې منعقد شو او په هغه کښې دمتحدینو ٤٤ مملکتو نو شرکت کړی او دجنګک دخاتمی په وخت کښې ئې داغذیو دتقسیمولو په باره کښې مذاکری او فیصلی وکړی یا هغه کنفرانس چه دجنګک دمصیبت رسیدونکو دخلقو د امداد دپاره په کښې خبری اتری وشوی او په دی کال دعقرب په میاشت کښې په واشنګټن کښې منعقد شوی و یا هغه کنفرانس چه د مدیترانی دحوزی خصوصاً دایطالیا داداری او اقتصادی مسائلو د مشوری دپاره په الجزیره کښې جوړ شو (جدی) یا هغه زراعتی کنفرانس چه د متحدینو ددولتو او دشرق وسطی دځینو ممالکو په شمولیت سره په قاهره کښې افتتاح شو (دلو) او داسی نور . . .

## محوری کنفرانسونه :

په محوری ممالکو کښې هم ځینی مهم کنفرانسونه منعقد شوی دی سره له هغه چه دجاپان او المان تر مینځ مستقیم مواصلات امکان نه اری بیا هم دادواړه مملکتو نه دخپلو سیاسی او نظامی نمایندګانو په ذریعه پر سیاسی او حربی مسائلو کښې بحثونه کوی .

دحمل په اخر کښې موسولینی او هټلر د (برینر) په دره کښې سره وکتل او دشمالی افریقا دجنګو په باره کښې ئې مذاکرې وکړی بیا د سرطان په پای کښې چه دمتحدینو عسکرو پر سسلی باندی یرغل وکړ ددواړو دیکتاتورانو په مینځ کښې په (برینر) کښې ملاقات وشو دا ملاقات آخری ملاقات و چه دموسولینی تر عزل دمخه ددهٔ او هټلر په مینځ کښې واقع شو داسی معلومیږی چه همدلته دایطالیا دضعف اودالمان د کمك تصمیم چه د ایطالیا مدافعه پر اوږه واخلی فیصله وشوه ځکه چه وروسته تر هغه چه موسو لینی روم ته وګرزید دهغه دعزل معامله پیښه شوه .

د بلی خوا دحمل په میاشت کښې هټلر په خپل کامپ کښې داروپائی دولتو زمامدا ران چه

محور سره ارتباط او اتحادارې انګه مجارستان ، بلغاریا، رومانیا، سلواکی ، ناروی، فرانسه او نور.. وغوښتل اودوی سره ئې ملاقاتونه وکړه چه موضوع یې دمتحدینو احتمالی عملیات په اروپا کښې اودروسیې دنوی پیشرفت مسائل و. همدارنګه پس له هغه څخه چه موسولیني سقوطو کړ دهتلر اوددغو اروپائي وا کوالانو په مینځ کښې نوی خبری اتری وشوی (میزان) د کال په پای کښې بیاداسی کنفرانسونه دهتلر په خصوصی مقر کښې جوړ شوچه په هغه کښې دجاپان لوی سفیر هم شامل ود بلی خوا په شرق اقصی کښې جاپان هم دخپلو متحدینو اودوستانو سره کنفرانسونه قائم کړه چه تر ګردومهم کنفرانس هغه کنفرانس وچه د توژو دجاپان د صدر اعظم ددوری په وخت کښې په هندچین ، سیام (تایلیند) برما، فلپائن او نانکنګ جوړ شوی و او بیا وروسته له هغه سفر څخه ددی ممالکو وا کوالان هم جاپان ته جلاجلا سفرونه کړی او دجاپانی مامورینو سره ئې حربی او سیاسی او اقتصادی کنفرانسونه قایم کړی دی توژو دوهمه پلا هم دسرطان په میاشت کښې د جنوب بحرالکاهل ددوری دپاره رسماً د توکیو څخه حرکت وکړ او دا پلا هم مهم کنفرانسونه ددغو پورتنیو ممالکو په خاورو کښې جوړ شوه اوددی سفر په پای کښې و چه د فلپائن آزادی د توکیو څخه اعلان شوه (میزان) .

## دمهمو ممالکو داخلی اوضاع :

اوس به دغو مملکتو مهم واقعات چه د دنیا په جنګ او په بین المللی اوضاعو مستقیم او غیر مستقیم اثر لری بیان کو :

### انګلستان :

دا مملکت په دی کال کښې خورا ډیر کوشش کړی دی چه په اروپا کښې تعرضی وضعیت پیدا کړی اود اروپا جنګ ته ژر تر ژره خاتمه ور کړی ددی دپاره دانګلستان کارخانی او وګړی ډیر فعالیت کړی او خورا زیات اسلحه ئې جوړه کړی ده همدارنګه ئې ډیر عسکر د خپلو مستملکاتو او دامریکا څخه انګلستان ته راوستلی دی او غواړی چه دوهم محاذ ژر تشکیل کړی دانګلستان او دامریکا روابط خورا صمیمانه معلومیږی او په ټولو مسائلو کښې یو دبله سره مشوره او دامشوری په اثر اقدام کوی دانګلستان دداخلی وضعیت په اثر هغو فتوحاتو چه په دی کال کښې د متحدینو په نصیب شوی دی خورا ترقی کړی ده که څه هم د ملت اعتما د پر خپلو واکوالانو زیات شوی دی . بیا هم ځینې سیاسی او اجتماعی مشکلات هم دانګلستان دحکومت په مقابل کښې پیداشوی دی لکه دپولیند او دروسیې نزاع او ددوګول او دژیرو مخالفت ، دلبنان سیاسی بحران ، د فلسطین دیهودو او داعرابو مسائل او داسی نور.. دبلی خوا دسکرود کانو د کارګرانو اعتصابونه...چه هریوه دانګلستان د حکومت افکار پریشان کړی دی تر ګردومهم دپولیند اوروس نزاع ده چه انګلستان غواړی دا دواړه مملکتونه سره موافقه ولری اولکه چه دچکوسلواکی اودروس په مینځ کښې داتحادقرارداد د ۲۰ کالو دپاره منعقد شوی دی (قوس)

د پولینډ او روس په مینځ کښې هم د جګړې د ختمېدو د غه داسې موافقه حاصله شي لیکن تر اوسه پورې په دې مقصد کښې کامیاب شوي نه دي ـ د بلې خوا د آزادې فرانسې د کمیټې په مینځ کښې چه پرون سږ کال موافقه شوې وه او د ګول او ژیرو سره موافق شوي وچه په نوبت سره د کمیټې ریاست وکړي بیا هم د کال په پای کښې د دوی په مینځ کښې مخالفت پیدا شو او لا تر اوسه پورې دوام لري او ممکن دي چه ژیرو به هم د کمیټې څخه استعفی وکړي . د سکروډ کانو د کارګرانو اعتصاب د دې د پاره دي چه د دوی زیات معاش غواړي او د جدي په میاشت کښې د څوورځو د پاره تقریباً ۹۰ زره کسو د کاره لاس اخستی و ـ او س حکومت د غیر مستقیمې لارې څخه اقدامات کوي چه دا اعتصابات چه د جګړې پر مساعیو باندې بد اثر لري بند شي ـ د میزان په میاشت کښې انګلستان د پرتګال څخه د یو قرار داد په قرار دا امتیاز حاصل کړ چه د جنګ تر آخره پورې انګریزي بېړۍ د پرتګال د (آزور) د جزیرو څخه استفاده وکړي . او دا قرار داد د متحدینو په هغه مساعیو باندې چه د جرمنې او بټلانو پر ضد ئې کوي خورا ښه تاثیر کوي . هم دا رنګه انګلستان د دلو په میاشت کښې اسپانیې ته اخطار ورکړ چه خپله همکاري د المان سره قطع کړي او د مطلق بیطرفي وضعیت اختیار کړي او د ایطالیا هغه جهازونه چه په اسپانیا کښې پټ دي بیرته د بادولیو حکومت ته ور کړي او خپل رضا کاران د شرقي محاذ څخه وغواړي او د اسپانیا کارخانې د المان د پاره نور حربي لوازم جوړ نه کړي ـ دا آخري خو اهش ئې د پرتګال څخه او د نورو بیطرفو مملکتو څخه هم کړی دی .

په دې کال کښې د انګلستان حکومت هغه د میانجي ګرۍ غیر رسمي عرضه چه د اسپانیا د حکومت په ذریعه د حمل او د ثور په میاشتو کښې وشوه رد کړه . هم دا رنګه هغه غوښتنې چه د پاپ په ذریعه د پاره د دې چه روم غیر نظامي ښار و بلل شي پېښ شو ـ د امریکا په موافقت سره ئې رد کړا و وئې ویل چه تر څو چه بیطرف هیئت دا ثابته نه کړي چه د روم څخه حربي استفاده نه کیږي ، متحدین حاضر نه دي چه روم غیر نظامي وپېژني د کال په پای کښې انګلستان دا کوشش هم وکړ چه (آزاد ، آیر) خپلې سیاسي روابط د محورریانو سره وشلوي ځکه د انګلیس په عقیده د هغو مملکتو د نمایندګانو او سیدل په آیر کښې د متحدینو د هغو قواو د پاره چه په شمالي آیرلینډ او حتی د انګلستان په خاوره کښې دي خطر لري . او دا اقدام د امریکا په ذریعه وشو (حوت) لیکن د آیر حکومت قبول نه کړه ـ د لبنان په مسئله کښې چه د لبناني مامورینو او فرانسوي وا کوالانو د مخالفت په اثر د عقرب په میاشت کښې پېښ شو او فرانسوي مامورینو لبناني رئیس جمهور او صدر اعظم او نور وزیران بندیان کړه انګلستان د امریکا په موافقت سره د لبنانیانو طرفداري وکړه او د فرانسې د نجات کمیټې باندې ئې فشار راووړ چه هغوی سره بیا موافقت وکړي ـ هم دا رنګه انګلستان د عرابو د اتحاد تحریک ته چه د مصر او د عراق په سر کردګۍ سره په دې کال کښې جاري شوی و په ښه سترګه و کاته لیکن کوم مستقیم اقدام ئې په دې باره کښې تر اوسه پورې نه دی کړی . د بالقان د نو و تشکیلاتو د پاره هم انګلستان داسې نظریه لري چه پس له جګړې

شخه هغو مملکتو ته اختیار ورکړ شي چه خپل طرز د حکومت وټاکي نو ځکه اوس انګلستان د یونان او
د یوګوسلاویا پاچاته لکه پخوا په رسمیت نه ګوري - او دوی چه په قاهره کښې اقامت لري هم اعلان
کړی دی چه تر سلح شخه وروسته دغه ملتونه هر راز حکومت چه خوښ کړي اختیار لري - لیکن
انګریزان نه غواړي چه دغه تغیرات اوس دستي اجرا شي او د جنګ په مساعیو کښې بد اثر واچوي
د ایطالیا د آینده رژیم د پاره هم انګلستان همغسې نظر لري. په دې کال کښې په انګلستان کښې
خورا مهم اجتماعي پلانونه جوړ شوي دي چه د هغه د رویه باید د جګړې وروسته د ټولو خلکو د پاره
د صحت، خوراک، کور، د تعلیم بیمه تامین شي.

امریکا :

په دې کال کښې د متحده ممالکو وضعیت د جګړې د پرمخ بیولو په لاره کښې
خورا ښېګڼ والي موندلی او د حربي اوازمو د جوړولو په باره کښې ئې زیات تر زیاته
توجه کړې ده. د بلې خوا د امریکائیانو ټوله توجه دې ته وه چه د جنګ نه وروسته باید
یو اساسي نظام په دنیا کښې قایم شي چه د جنګو لاره د اوږدې مدې د پاره بنده کړي. په عین زمان کښې
چه امریکا او انګلیس د اروپا د جنګ په شا وخوا کښې په متحده اقداماتو بوخت و بیا هم
امریکائیان د جاپان ماتې ته زیات نګران و او دې غرض د پاره د امریکا د حربي توجه مهمه
برخه دې خواته معطوفه وه - د بین المللي او ضاعو په باره کښې او د جنګ د پرمخ تګ
په نسبت امریکا په هره زمینه کښې د انګلستان په همکاري اقدامات کړي منګر بیائې هم د خپل
اقتصادي - او تهذیبي نفوذ د پاره مخصوصاً په نژدې شرق کښې جلا اقدامات کړي دي
چه د هغې جملې شخه یو اقدام هغه قرارداد دی چه سعودي عربي سره د هغه مملکت د نفتو
د استخراج د پاره شوېدی او بل اقدام ئې د (پټرک هرلې) خپل خصوصي نماینده لېږل دي
شرقي ممالکو ته چه په هغه جمله کښې چین، افغانستان، ایران، عراق، سوریه، مصر، ترکیه
او نور هم شامل دي. په دې کال کښې د اعتصابو د جلوګیرۍ په مقصد کښې په امریکا کښې
یو قانون تصویب شو چه حکومت ته ډېر اختیارات ورکوي. د کال په پای کښې د قرض او اجاري
قانون چه د درو کالو د پاره ئې اعتبار درلود و پای ته ورسیده لیکن بیا د یو کال د پاره تمدید شو
لکه چه د امریکا اخبارونو لیکلي دي، روسانو غوښته چه دا قانون د څلورو کالو د پاره تمدید شي
لیکن امریکا دا شرط پېښ کړی دی چه لمړی به روس د جاپان سره په جنګ پیل کوي بیا به امریکا
دا قانون د څلورو کالو د پاره تمدید کوي. بیا هم په دې کال کښې د روس او د امریکا روابط
خورا ښه ؤ او د روزولټ او کوردیل هل ملاقاتونه د ستالین سره صمیمانه و - په دې کال کښې
د امریکا حربي بودجه اس ملیارد دالرو ته رسیدلې وه چه په هغه کښې د طیارې او د بېړیو د جوړولو
د پاره خورا مهم اعتبارات شامل وه - د کال په پای کښې د امریکا په مجلس سنا کښې
یو پیش نهاد وړاندې شوی ؤ چه د هغه د قراره باید امریکا دا تصویب کړي وای چه فلسطین
د یهودانو اصلي وطن وپېژندل شي - په دې نسبت عربي ممالکو او د دنیا نورو مسلمانانو د احتجاج

زغو نه پوره کړل - لیکن تر اوسه پورې ئې نتیجه معلومه شوې نه ده او نه هغه پیشنهاد په عملي شکل مونږ ته رسیدلی دی - د کال په آخر کښې د نوو انتخاباتو زمزمه پیداشوه - لکه چه تر اوسه پورې معلومه شوې ده ، د هر امکان لرې چه روزولت بیاهم دخلورم وار دپاره په ریاست انتخاب شي د کال په آخرو ورځو کښې فیصله شوه چه دامریکا دخارجه چارو دوزارت نوی معین (ستتي نیئي یس) چه څو مده دمخه د(سمنر ویلز) په عوض مقرر شوی دی انګلستان ته ولاړ شي او د چرچل او ایدن او نورو انګلیسي واکوالانو سره مذاکره وکړی فکر کېږي چه دا سفر به د اروپا د آینده تشکیلاتو دپاره ځان سره کومه نقشه انګلستان ته یوسي منګر بیاهم اعلان شوی دی چه په دی ملاقاتو کښې کوم نوی قرارداد د دواړو مملکتو په مینځ کښې نه لاس ته لیک کېږي بلکه دغه سفر صرف یومشورتي جنبه لري .

## شوروی اتحاد :

شورویانو په دی کال کښې دخپل مقصد دحاصلولو په لاره کښې خورا لوی لوی قدمونه اخیستي دی . لکه چه د کال په پای کښې معلومېږي په نوی کال کښې به نه یوازې درو سیې خاوره بیخی دالمانیانو دلاسه خلاصه شي بلکه دروس عسکر به داروپا مهمه برخه هم د المانیانو دلاسه واخلي . دروس حربي پلان په ۱۳۲۲ کال کښې کاملاً تعرضي و او همدار نګه دغه حربي او صنعتي مساعي په خورا لویه پیمانه په پیشرفت کښې و.

دجدی په میاشت کښې امری-پلا روسي عسکر په خپلو اصلي خاورو کښې تېر شوه د پولیند د ۱۹۳۹ سرحد و کښې ننوتل او څو ورځې وروسته د استونیا خاوره کښې (دلو) او د کال په پای کښې درومانیا د ۱۹۴۰ سرحدو کښې داخل شول . د کال په آخر کښې المان صرف دسپین روس یوه برخه او د کریمیا په شبه جزیره کښې پاته و، حالا نکه دروس پیشقدم عسکر د رومانیا مجارستان او چکو سلواکي خاورو ته رسیدلی و.

دادروسیې نوو پیشرفتونو ځینې سیاسي مسائل مینځ ته واچول چه دانګلستان په وافعاتو کښې ورته اشاره وشوه - او دغه مسائل دادي چه آیا روس داروپا دهمسرحدو مملکتو په باره کښې څه فکر او اراده لري . آیا پس له هغه څخه چه دوی دالمانیانو دلاسه نجات ور کوی ، د دغو مملکتو خاوره د خپل مملکت ضمیمه کوی ؟ او په سیاسي رژیم کښې ئې تغیر راولی که په ؟

دا سوالونه چه ددې کال په دوهمه برخه کښې ئې دانګریز او امریکا توله توجه ځان ته جلب کړی وه اګر که دمسکو او دطهران په کنفرانسو کښې په دې باره کښې عمومي مذاکره شوی وه بیا هم وروسته تر هغه چه روسي عسکر په پولیند او استونیا او رومانیا کښې داخل شول ، دی سوالو بیا جدیت پیدا کړ . تر ګردو مهمه مسئله دروس او پولیند روابط دی . ځکه چه د ۱۳۲۲ په شروع کښې دپولیند او دروسیې روابط خراب بلکه بیخی سره شلېدلي و - علت ئې داو

چه د حمل په میاشت کښې د المانیانو دخوا یو خبر خپور شوی وْ چه د ( کاتین) د ځنګل په شا
وخوا کښې څه د(سمولنسک) سره نژدې پروت دی ، د لسو زرو پولینډي صاحب منصبانو
نعشونه پیدا شوي دي چه دوی د روسي د عسکرو د خوا وژلي شوي - د پولینډ حکومت
چه په لندن کښې دی د ددې خبر د نشر په اثر بین المللي صلیب احمر ته مراجعه وکړه او ددوی
څخه ئې غوښتنه وکړه چه هیئت مقرر کړي چه هغه ځای ته ولاړ شي او نعشونه وګوري . د روس
حکومت ددې اقدام په اثر کښې خوا بدی شو او پولینډ ته ئې وویل چه اصلي باید د قلیم
پرو پاګنډه ته اهمیت ورنکړي - هر کله چه پولینډ حکومت دا خبره ونه منله نو د روس حکومت
د ثور په میاشت کښې د پولینډ سره روابط قطع کړه - د انګریز او د امریکا حکومتونو کوښښ وکړ
چه د انزاع فیصله شي مګر روسان راضي نه شوه چه بیرته هغه حکومت رسمي وپیژني
بیا چه د روس فوځونه د پولینډ په خاورو کښې ننوتل (جدی) د پولینډ حکومت روسانو ته مراجعه
وکړه چه باید د پولینډ په تمامیت اعتراف وکړي - د روس حکومت بیا هم د دغه حکومت د پیژندلو
څخه انکار وکړ لیکن وئې ویل چه مونږ موافقت لرو چه وروسته ترجګړي د سرحد د مسئله
فیصله شي او هغه وخت هم زمونږ او د پولینډ سرحد په هغه ځای کښې وی چه په ۱۹۱۹
کښې د جامعهٔ ملل د خوا د لارد ( کرزن) په ذریعه یو سرحدي خط جوړ شوی و او هغه خط تقریباً په هغه ځای
کښې راغی چه په (۱۹۳۹) کښې د پولینډ د تقسیماتو په وخت کښې د روس په حق راغلی و - دی اعلامیې
د انګلیس او د امریکا ضمني موافقت هم حاصل کړی و بیا هم امریکا د میانجی کړی پیشنهاد روسانو ته
وکړ بیا د روس حکومت ونه مانه (د جدی په اواخرو کښې) مګر د بلی خوا هغه وخت چه روسي
عساکر په روما نیا کښې داخل شوه (حوت) د روس حکومت اعلان وکړ چه روسیه دا اراده نه لري چه
بی له (بسارابیا) او شمالي (بوکووینا) څخه چه په ۱۹۴۰ کښې روسیې ته سپارل شوی و د رومانیا
نوره خاوره ونیسي . همدا رنګه هغه وخت چه د فنلینډ حکومت د داوپه پای کښې د روسیې سره د صلح
د مذاکراتو د پاره آمادګي وکړه روسیه د هغه مملکت سره د صلح کولو د پاره حاضره شوا ودا
شرطونه ئې ورته پیش کړه : د روس او د فنلینډ سرحد هغه سرحد دی چه په ۱۹۴۰ کال کښې فیصله
شوی و الماني عساکر باید په فنلینډ کښې خلع سلاح او نظر بند شي - فنلینډ دې هغه تاوان جنګ چه
په آینده مذاکراتو کښې فیصله کیږي قبول کړي بالمقابل روسیه د فنلینډ په استقلال او تمامیت
اعتراف کوی او د فنلینډ په داخلي چارو کښې مداخله نکوی او ترڅو چه د فنلینډ حکومت د المان
د عسکرو په باب کښې د روسیانو نه امداد و نه غواړي ، د روس عسکر د فنلینډ پر خاوره کښې نه داخلیږي .
هر کله چه دا شرایط د انګریز او د امریکا د خلقو په نظر کښې هم منصفانه وو بیا د فنلینډ حکومت تر اوسه
پوري ورسره موافقه نه ده ښکاره کړي او ګمان نه کیږي چه په دې نژدې اوقاتو کښې به دوی که
موافقه وکړي . لیکن د بالتیک د ممالکو په باره کښې اګر که تر اوسه پوري کم رسمي خبر نه دی پیښ شوی

مګر عملاً داسې معلومیږي چه روس پر هغه الحاق باندې چه په ۱۹٤۰ کښې اجراء شوی و ټینګ دی او هغه مملکتونه په خپلو جماهیرو کښې حسابوي او انګلیس او امریکه هم په دې کښې څه اعتراض نلري.

او س راغلو د روسیې داخلي واقعاتو ته: ترکرد و مهمه واقعه د لمنترن د بین المللي تشکیلاتو لغوه کیدل وه چه د جوزا په اول کښې فیصله شوه ـ په دې ذریعه هغه موسسه چه بالشویکي پروپاګندې په خارجي ممالکو کښې کاوه منحل او هغه خوف چه د روس د مداخلې په نسبت په نورو ملتو کښې و نظراً رفع شو.

بله مهمه واقعه په روسیه کښې هغه فیصله ده چه د ۱۹٤٤ په شروع کښې د شوروي د حکومت د خوا وشوه او د هغې په قرار د شوروي د جمهوریتو هر یو کولای شي چه ځانته عسکر ولري او سیاسي مناسبات د خپلو همسایه او نورو خارجي مملکتو سره قایم کړي. چه د دې اقدام سیاسي هدف هر څه چه وي ظاهراً د خپلو جماهیرو د داخلي استقلال دور کولو مفهوم لري. د بلې خوا شوروي حکومت په دې کال کښې د چکوسلواکۍ د جمهوریت سره د شلو کالو د پاره یو دوستي او اتحاد قرار داد امضاء کړی دی (قوس) او په هغه کښې ئې دا هم ویلي دي چه نور اروپائي مملکتونه مثلاً (هالېند) هم کولای شي چه په دې قرار داد کښې شامل شي ـ همدا رنګه شوروي حکومت د اروپا د نورو مملکتو سره هم خپل روابط زیات کړي دي مثلاً د فرانس د نجات امیته او د بادولیو حکومت ئې په ایطالیا کښې پیژندلی دی (عقرب ـ دلو) او خپل نماینده ګان ئې د هغو حکومتو مرکز و ته استولي دي چه د دې آخري اقدام د انګریز او امریکا تصدیق نه دی حاصل کړی ځکه چه دوی تر اوسه پورې دا دواړه تشکیلات د رسمي حکومتو په حیث نه دي پیژندلي ـ بالمقابل د انګلیس او امریکا حکومتو د روسیې سره دا موافقه کړې ده چه هغه مملکت د مدیترانې د مشورتي کمېټې او د ایطالیا نګراني کمېټې ته خپل نماینده ګان ولیږي چه د هغه په اثر روسیا او (ویشنسکی) د خپل خارجي کمیسار معاون د نماینده په حیث شمالي افریقا ته لیږلی دی همدا رنګه د روس حکومت د یوګوسلاویا د ملي قواو سره چه د مارشال تیټو تر اثر لاندې د قوس راهیسې د یوګوسلاویا د انقلابي خلقو قیادت کوي خپل روابط قایم کړي دي او غواړي چه په تولو اروپائي مسائلو کښې شامل وي د کال په آخر کښې دا خبر خپور شو چه متحدین غواړي چه د ایطالیا د بېړیو یوه برخه روس ته ورکړي مګر پس له هغه څخه چه روس د بادولیو حکومت په رسمیت وپیژانده دا خبره خاموش شو موده دا آوازه هم وه چه روسانو غوښتي دي چه دوی ته کم بندر په مدیترانه کښې ورکړشي مګر تر اوسه پورې ئې حقیقت نه دی موندل بیا هم د روسانو دلچسپي په مدیترانه کښې روځ په روځ زیاتیږي د روس او د جاپان روابطو په دې کال کښې تقریباً یو معمولي شکل درلود او هیڅ داسې یوه واقعه چه د هغو په روابطو کښې کم تغیر پیښ کړی نه دی ښکاره شوې د کال په آخر کښې (حوت) هغه قرارداد چه د روس او د جاپان په مینځ کښې د (سخالین) د معادنو په باره کښې وجود درلود و پای ته.

ورسېده او جاپانیانو موافقت وکړ چه آینده به روس په خپله دغې جزیرې په روسی برخه کښې به نفتو او نورو معادنو کار واچوی او ماهګیری به هم د دغې جزیرې په اوبو کښې روسیان په خپله وکړی دروس او د چین روابط هم عادی و. اګر که ستالین موافقت ونه کړ چه د چیانګ کای شیک سره ملاقات وکړی بیا هم د چین او د روس په روابطو کښې د کال تر پایه پورې کم نوی تغیر پیدا شوی نه و تر هغه پورې چه د حوت په آخر کښې د خارجی مغولستان په باره کښې د دوی په مینځ کښې یو مختصر تصادم پېښ شو دا تصادم داسی و چه چینی قواوو غوښتل چه د خارجی مغولستان چه یو کمونستی مستقل جمهوریت بلل کېږی د خپلو یاغی قومونو په تعقیب سره تجاوز وکړ او روسانو اخطار ورکړ چه که چېری دا چینی قوا فوری د مغولستان له خاوری ونه اوزی نو به د روس مسلح قوا د دوی د خارج کولو دپاره اقدام وکړی مګر دا واقعه ژر فیصله شوه او تر اوسه پورې ئې څه نوی عواقب پیدا کړی نه دی .

په دې کال کښې ستالین په خپلو رسمی بیاناتو کښې څو واره هغه افواهات چه د روس د جلا صلح کولو په باره کښې په انګلیس او امریکائی یا محوری مطبوعاتو کښې نشر شوی و تردید کړی او ویلی دی چه هیڅکله روس اراده نه لری چه د المانیانو سره یوازی صلح وکړی .

## المان :-

په دې کال کښې د المان مملکت د خورا مهمو مشکلاتو سره مخامخ شوی دی ځکه چه د یوی خوا د متحدینو قوا په ایطالیا کښې کښته شوی او د محور یو مهم رکن لکه ایطالیا د جګړی څخه لاس واخست او د بلی خوا د روس لښکرو المانیان په ټولو جبهاتو کښې تر شا کېدو ته مجبور کړی او سر بیره په دغې د بلی خوا د متحدینو د حملی خطر په غربی اروپا کښې یو اساسی وضعیت پیدا کړ چه هره ورځ دا خطر زیاتېږی او نژدې کېږی بیا هم المان په دې کال کښې خورا ډېر حربی او سیاسی کوښښونه کړی او نه ئې دی پرې ایښی چه غلیم د یوی خوا هم د المان په ننی استحکاماتو کښې رخنه واچوی یا د المان عسکرته قطعی ماتې ورکړی یا د المان د ملت ورو حیاتو ته کم اساسی صدمه ورسېږی لکه چه د انګلستان صدر اعظم په خپله وینا کښې ویلی دی د المان ملت لا تر اوسه پورې هم خپلو قائدانو سره وفاداری او اعتمادلری او د المان حربی قوه هم مضبوطه او خورا ډېره ده .

المانیانو په دې کال کښې خورا ډېر کوښښ کړی دی چه د یوی خوا د المان د مملکت او نورو متصرفه مملکتو مادی او معنوی منابع په آخری پیمانه په کار واچوی او د بلی خوا د اروپا د قلعې ټولی خواوی استحکام او بندی شی د دی مقصد دپاره هټلر شخصا دار وپاد وا کوالانو سره څو واره کتلی او ممدارنګه د اروپا په غربی او شمالی او جنوبی ساحلو کښې خورا مضبوط استحکامات جوړ شوی دی چه د کال په آخر کښې ټول تکمیل موندلی او ساحلی رقبې د ملکی وګړو څخه تخلیه شوی دی د موسولینی سقوط او د ایطالیا تسلیم له شکه هم د هټلر دپاره خوړاوړه صدمه وه بیا

هم الماندې صدمې سره په ډېره حوصله او جديت مقابله کړې او دهغو دخرابو عواقبو جلوګيرې ئې کړې او خپل مو قعيت ئې زرتر زره اصلاح او ټينګ کړ د موسوليني نجات چه د بادوليو د بندي خانې څخه په يو اسرار آميز طور سره د هټلر د باسوسانو په ذريعه وشو- يو عجيب شاهکار دی چه نه يوازې د هټلر رسوخ او پيش دستي ښکاره کوي بلکه روحا يې هم دمحور پر ممالکو خورا اويه اغيزه کړې ده .

هر کله چه په دې کال کښې د متحدينو بمبارې پر المان او متصرفه ممالکو کښې خورا زيات شدت کړي و دا هم د المان د حکومت د پاره يوه اويه وظيفه وه چه د مصيبت رسيد ونکو ملتو د پاره ځايونه پيدا کړي او د لويو ښارو د مدافعې د پاره جدې ترتيبات ونيسي چه په دې کښې هم د المان حکومت خورا مهم او موثر ترتيبات نيولې دي چه د دغه زياتې بمبارې په اثر بيا هم کله داسې بې نظمې چه د حربې مساعيو په لاره کښې سکته پيدا کړي ايدلې شوې نه ده او نه د المان د ملت لکه د ايطاليا د ملت د ناراضي زغ پورته شوې دی .

مخصوصاً هغه کلکوالی چه د ايطاليا په جګړه کښې د المان د خوا په ژمې کښې ښکاره شو- ډېر د تعجب وړ دی . منګر بيا هم د کال په پای کښې د المانيانو وضعيت په شرقي محاذ او د شرقي اروپا په ممالکو کښې دفعتاً خراب شو . د فنليند د مصالحې خواهشات اګر که د المان پر مو افقت سره شروع شوي وي بيا هم د المان د ضعف علامه بلل کيږي - همدا رنګه په مجارستان او په رومانيا کښې چه تر اوسه پورې د المان رښتني متحدين شميرل کيدل هغه د بې اعتمادې- روح چه د حوت په مياشت کښې ايدلې شوې و ، دا ښکاره کوي چه اوس د اروپا هغه مملکتو نه چه د المان سره متحدو ، لکه پخوا د المان پر فتح باندې اطمينان نه لري او غواړې چه ځانونه د المان د اتحاده څخه وباسي - نو ځکه المان هم يو اساسي او به موقع اقدام و کړ او د دې مملکتو خاورې ئې د خپلو قواؤ په ذريعه کاملاً اشغال کړې او په هغو مملکتو کښې ئې مخالف عناصر د مينځه څخه ورک کړه (حوت ۱۳۲۲) چه لکه ايطاليا هغه وخت چه روسان ورنږدې کيږي د مصالحې زغ پورته نه کړي . سره له دې ټولو بيا هم د المان وضعيت په اروپای شرقي کښې مطمئن نه دی او د روس پيشرفت چه د نوي کال په سر کښې ئې د چکو اسلوا کې تر پخوانو سرحداتو يعنې د مجارستان ، روماني ، پوليند ز په ئې ځان رسولی دی د المان د پاره ډېر خطرناک معلو ميږي که چيرې المان په دې نږدې اوقاتو کښې موفق نه شو چه د روس د پيشرفت مخه بنده کړي نو وضعيت به ئې وخيم شي - تر اوسه پورې داسې علامه چه د روس دير مخ تګ د بند ولو د پاره په کم مخصوص ځای يا په کم معين موقع کښې دلالت وکړي په نظر نه راځي بيا هم د حمل په آخر کښې د شرق په محاذ کښې سستي پيدا شوې ده د کال په پای کښې بيا هټلر د خپلو متحده اروپائي حکومتو لکه - مجارستان ، ناروې ، سلوا کيا بوهيميا او موراويا ، کرواتيا ، فرانسه ، رومانيا او نورو ... وا کوالانو سره يوه سلسله

کنفرانسونه شروع کړی دی چه په هغو کښې مهم او آخری تصمیمات داروپا دمدافعې په لاره کښې
نیول کیږی .

## جاپان :

په دی کال کښې جاپانیان هم لکه المانیان ځینو مشکلاتو سره مخامخ شوی دی. هر کله
چه امریکائیانو دجنوب غربی بحرالکاهل په حوزه کښې په متقابلو حملو پیل کړی دی نو جاپانیانو
ته دالازمه شوه چه خپله توجه ودی برخی ته معطوفه کړی او ضمناً ځرنګه چه دامریکا قوه
روز افزونه ده او قدم په قدم دجاپان د خارجی مدافعی پر خط حمله او تصرف کوی او ځان
دجاپان وداخلی او حیاتی حوزی ته نژدی کوی ، دا هم ضروری ده چه جاپان دخپلی خاوری
دمدافعی دپاره ترتیبات ونیسی . ددې مقصد دپاره په دی کال کښې جاپانیان دیوی خواهغو شرقی
ملتونو ته چه د شرق آسیا پر حوزه کښې پراته او دجاپان تر تصرف لاندی دی ، ځان نژدی کړی
او دجاپان صدراعظم شخصاً دوه پلا په هغو مملکتو کښې دوره کړی ده او دبرما او فلپائن داستقلال
دپاره ئې اعلانونه نشر کړی دی او دبلی خوا دملی منابعو دپه کار اچولو په شاو خوا کښې په آخری
پیمانه سره اقدامات کړی او ټول ملی منابع ئې دحربی وزارتو تر اثر لاندی راوستلی دی چه دهغه
په اثر د کال په پای کښې دجاپان په حربی تشکیلاتو کښې هم تغیرات راغلی او توجو صدراعظم د ریاست
ارکان حرب عهده هم په خپلو اوږو واخیستی ده . اګر که دجاپان دخارجه چارو وزیر (تانی) دحمل
په میاشت کښې تبدیل شو او (شیګی منسو) دهغه عهده په لاس واخسته مګر بیاهم دجاپان په خارجی
سیاست کښې کم تغیر پیدا نشو . دجاپان روابط دروسیې سره په عادی شکل دوام وکړ او لکه چه
مو دروسیې دواقعاتو په ضمن کښې ولیده ، د کال په آخر کښې جاپان او روس سره موافقه وکړه چه
د(سخالین) دنفتو او ماهیګیری قرارداد بیا تجدید نه شی . لیکن دا معلومه نه شوه چه دا فیصله ددواړو
مملکتو دنږدیوالی سبب دی یاددوی دلیری والی . مګر تر اوسه پوری کم مهم تغیر دهغو په روابطو
کښې پېښ شوی نه دی ، د کال په آخر کښې جاپانیان چه دامریکائیانو په مقابل کښې د بحرالکاهل په
جنوب غربی برخه کښې په دفاعی جنګونو بوخت و ، دانګریزانو تهدید ئې دبرما په شمال کښې هم حس
کړی او ددې دپاره چه دهغوی اقدام باطل کړی ، په یولوی تعرض ئې دبرما په وسطی جبهه کښې شروع
وکړه او په عین زمان کښې ئې دا هم ښکاره کړه چه دا یو اساسی یرغل پر هند باندی دی او دا
اقدامات دهند دجدید التشکیل ملی عسکر په ذریعه چه د(سوباس چندرا بوس) تر اثر لاندی په برما
کښې تشکیل شوی دی اجرا کیږی . دا مظاهرات ددې دپاره دی چه دهندوګوته دانګریزانو
په مقابل کښې تعرضاتو ته اړ کړی او انګریزان په هند کښې دځینو مشکلاتو سره مخامخ شی او په
پای کښې دخپل پلان دعملی کولو څخه لاس واخلی . دا ګمان نه کیږی چه جاپان دې په دغه وخت
کښې چه دامریکا قوای دهری خوا په بحر او فضا کښې دجاپان واصلی خاوروته نژدی کیږی به

هندباندی د کم اساسی حملی مجال ولری . بلکه برخلاف دافکر کیږی چه جاپان خپل دفاعی وضعیت
په دوام ور کوی ترڅو چه دارو بادبګړی وضعیت معاوم شی وروسته بیا خپل پلان د متحدینو د حملی
د باره فیصله کوی . بیاهم د ثور په میاشت کښې دجاپان حکومت هغه امریکائی پیلوتان چه په تو کیو
ئی په تیر کال کښې بمباری کړی اودجاپانیانو په لاس کښې اسیر شوی و اعدام کړه او دامریکادي
اعتراض ته ئی چه داقدام د بین المللی مقرراتو سره مخالف دی څه اعتناو نکړه - وروسته تر هغه د جدی
په میاشت کښې چه د متحدینو د فضائی حملو تهدید پر جاپان د هغو د پیشرفتونو په اثر زیات شو دجاپان
دلویو ښارو په تخلیه ئی شروع و کړه .

سره له هغه چه دجاپان او د المان په مینځ کښې کم مستقیم ارتباط امکان نه لری بیاهم دوا ړه
مملکتونه په سیاسی او حربی مسائلو کښې دائم په تماس کښې دی اودجاپان حکومت د ایطالیا
نوی فاشستی حکومت چه د موسولینی د خوا جوړ شو هم په رسمیت سره وپیژ انده (سنبله) .

ایطالیا :-

په دې کال کښې ایطالیا دخورا ډیرو مشکلاتو او بدبختیو سره مخامخ شوی ؤ- چه د هغه
مملکت سیاسی او حربی سقوط ته منجر شو - هغه وخت چه د محور قواؤ په شمالی افریقا کښې
شکست وخوړ ، دایطالیا داخلی وضعیت خراب شو - دایطالیا ملت و پوهیده چه د متحدینو
دقواؤ په مقابل کښې نور مقاومت امکان نه لری باید یا د متحدینو سره صلح وکړی یا خپله خاوره
المانیانو ته وسپاری چه دوی د هغه مدافعه وکړی . ددی په اثر ؤ چه موسولینی و روسته له هغه
څخه چه د متحدینو قواؤ په سسلی په حمله پیل وکړ - د هتلر د ملاقات دپاره ولاړ اوکه چه ملو مېږی
موسولینی هتلر ته پیشنهاد کړی و ، چه دایطالیا هغه عسکر چه داروپا په متصرفه ممالکو کښې دی
بیرته ایطالیا ته راشی او المان صرف دطیاری او نورو حربی لوازمو ایطالیا سره مرسته وکړی - مګر
هتلر دا پیشنهاد قبول کړی نه او خواهش ئې کړی وچه المانی عسکر باید دا یطالیا خاوره
تو له اشغال کړی او د هغه مملکت مدافعه کاملاً په اوږه واخلی - موسولینی چه بیرته روم ته راغی
داخبره ئې خپلې کابینې او پاچا ته وکړه - دلته اختلافات زیات شول - او د هغه په اثر پاچا د مارشال
بادولیو په موافقت سره موسولینی بندی کړ (اول داسد) او بادولیو نوی کابینه جوړه کړاو فاشستی
اساسونه ئې لغوه کړه او په خفیه طرز سره ئی د متحدینو سره په مذا کره پیل وکړ او په ضمن کښې ئې
جنګ ته هم دوام ور کړ - مګر هر کله چه متحدینو د خپل اساسی شرط یعنی بلا شرط تسلیم څخه
صرف نظر ونه کړ - نو بادولیو بلاشرط تسلیم شو اود سنبلې په ۱۵ تاریخ دایطالیا عسکر اسلحه
پریښوده - المانیانو په چابکی سره دایطالیا د مدافعې دپاره ځانونه حاضر کړل دایطالیانوی
حکومت دایطالیا په جنوب کښې د(باری) په ښار کښې خپل مرکز و تاکه اود میزان په ۱۹ ئې

دالمان پرضد دجنګک اعلان هم وکړ بیاهم متحدینو دایطالیا عسکرو ته داسلحې داستعمال تراوسه پورې اجازه نه ده ورکړې موسولیني چه دهتلر په مرسته دبندي خانې څخه وتښتېده (۲۰ دسنبلې) په ۲۳ دسنبلې ئې په شمال ایطالیا کښې نوی حکومت دفاشست دجمهوري په نامه سره تشکیل کړ او دشاهي حکومت دلغوې فرمان ئې هم صادر کړ ـ چه المان اودالمان نورو متحدینو دانوی حکومت په رسمیت سره وپېژانده ـ بیاهم تراوسه پورې موسوليني موفق شوی نه دی چه په جګړه کښې کومه مهمه برخه واخلي ـ په عین زمان کښې موسولیني دالمان په مشوره سره هغه کسان چه دایطالیا په تسلیم ئې موافقت کړی او دموسولیني سره ئې مخالفت او فریب بازي کړې وه محاکمه او اعدام کړه چه په هغو کښې دموسوليني زوم (کونت چیانو) دایطالیا پخواني وزیر خارجه هم شومو ده دمخه د مخالفت نظر په اثر د کابینې څخه استعفی کړې او په واتیکان کښې په سفارت مقرر شوی و ـ شامل و ـ لیکن دایطالیا پخوانی رئیس ارکان حرب (کاباليرو) دایطالیا دتسلیم داحتجاج دپاره خود کشي وکړه .

د کال په پای کښې چه دایطالیا مشورتی کمیته دمتحدینو دخوا جوړه شوه ـ د هغو علاقو اداری چاری ئې چه دالمان دلاسه وتلي وې، دبادولیو حکومت ته وسپارلې ـ دبادولیو حکومت د متحدینو دخوا دیو رسمي حکومت په حیث پېژندل شوی نه دی صرف روسانو هغه حکومت رسمي پېژندلی دی . دبادولیو حکومت دمتحدینو په مشوره غواړي چه دایطالیا ټولو احزابو ته دایطالیا په اداره کښې موقع ورکړي حتی دوی ته دااختیار هم ورکړي چه دسیاسي رژیم په باره کښې هم آزادانه فیصله وکړي ـ اوس دفاشست مخالفانو لکه (کونت سفورزا) او (کروچي) چه په خارج کښې و ایطالیا ته ئې مراجعت کړی او دایطالیا دآینده په باره کښې فکر کوي دایطالیا پاچا هم د کال په آخر کښې فیصله کړې چه هغه وخت چه روم دمتحدینو په لاس فتح شي ، دخپلې عهدې څخه لاس واخلي او حکومت خپل ځوی (امبرتو) ته ورو سپاري .

نور مملکتونه :ـ

شرقي مملکتونه :ـ

دافغانستان همسایه مملکتونه :ـ په ایران کښې په دې کال کښې آرامي وه ـ اګرکه اقتصادي او خوراکي مشکلاتو دوام دراود منګر لکه پرو سږ کال قحطي نه وه ـ د طهران د کنفرانس په وخت کښې متحدینو په یوه مخصوصه اعلامیه کښې دا ښکاره کړه چه دوی ایران دمتحدینو په قرار پېژني او دجګړې وروسته به دمتحدینو قوا دایران څخه خارج شي اودایران استقلال او تمامیت پېژني ـ د کال په پای کښې (سهیلي) دخپلې عهدې څخه استعفی وکړه او

(محمد ساعد مراغی) پخوانی وزیر خارجه نوی کابینه تشکیل کړه ـ لیکن دا تغیر لکه چه نوی صدراعظم وویل دایران په خارجی سیاست کښې کوم تغیر نه راوړی.

دایران یو عرفانی هیئت هند ته تللی او د کال په اخر کښې بیا د نوی کال تر لمړی میاشتې پوری د هند په ولایاتو کښې د عرفانی موسساتو او تاریخی ځایو په لیدلو مصروف و.

## هند :ـ

د هند په اوضاعو کښې په دې کال کښې کوم مهم تغیر پیښ شوی ندی ـ د هند په غربی او جنوبی علاقو کښې (مچخو) حمله کړی او فصلو ته ئې ډیر نقصان رسولی دا سد په میاشت کښې مارشال ولول د هند پخوانی عسکری قوماندان د لارډ (انلتګو) په عوض چه د هغه د ماموریت میعاد پوره شوی و، د هند د نایب السلطنه په حیث مقرر شو او جنرال (آکن لیک) د شرق وسطی پخوانی قوماندان د هند په قوماندانی وټاکل شو د هند په سیاسی اوضاعو کښې څه تغیر راغلی نه دی ـ د کانګرس د حزب مشران بندیان دی ـ د مسلم لیګ حزب هر وخت د پاکستان مطالبه کوی د صوبهٔ سرحد او د آسام په ولایت کښې د مسلمانانو د خوا ملی کابینې جوړې شوی دی ـ په هند کښې انګریزانو د جیره بندی اصول شروع کړی دی. په دې کال کښې د بنګال او آسام قحط یو څه تخفیف موندلی د هند حربی پیښې په خپل ځای کښې بیان شوی دی.

## چین :ـ

د چین حربی واقعات مو د دنیا د جنګ په ضمن کښې مفصل وویل، چینیانو په دې کال کښې خپل حربی جدیت ته ډیره ترقی ورکړی او امریکائیانو هم د دوی د عسا کرو د تنظیم او تجهیز د پاره د هوائی لاری صاحب منصبان او حربی لوازم ور واستول ـ د چین یو هیئت په انګلستان او امریکا او نورو مملکتو کښې دوره وکړه او مادام چیانګ کای شک هم د خپلې دوری په وخت په امریکا کښې د امریکائیانو د توجه په جلب لوا کښې د چین وخواته خوراه ډیر کوښښ وکړ خو اوس امریکا او انګلیس په اکثر و سیاسی مسائلو کښې چین ته هم د اوی یو دولت په حیث اهمیت ورکوی او وائی چه د آینده دنیا په ترتیبا تو کښې به چین هم بنا یسته ښه ځای ونیسی. د کال په آخر کښې د چین او افغانستان په مینځ کښې یو د دوستی او حسن همجواری قرار داد په انقره کښې امضاء شو چه د هغه په اثر به د افغانستان او د چین په مینځ کښې سیاسی او اقتصادی روابط قائم شی ـ دا قرار داد په افغانستان او په چین کښې خورا ښه تلقی شوی دی، د کال په آخری ورځو کښې د چین او د روس په مینځ کښې د خارجی منګولستان په سر یو دلاندله لشید کی پیدا شوی او ژر رفع شوه د سنبلې په میاشت کښې جیانګ کای شک د چین حربی قائد د چین په ریاست جمهور هم انتخاب شو چه اوس هم صدراعظم

دی هم - رئیس جمهور اوهم نظامی اعلی قوماندان .
( دروسېږي واقعات موجلا بیان کړی دی )

## ترکیه :-

په دی کال کښې ترکیې بیاخپلی بیطرفی ته سره له هغو ټولو مشکلاتو چه دبین المللی اوضاعو په ضمن کښې پیښ شوی و دوام ور کړ - دقاهری د کنفرانسو په اثر کښې اگر که ویل شوی و چه ترکیه به ژر دمتحدینو سره په حربی زمینه کښې هم مرسته و کړی - بیاهم ترکانو بیطرفی ته ترجیح ور کړی اوله جنگ سره ئې مستقیم یاغیر مستقیم تعلق نه دی پیدا کړی ددا و په میاشت کښې دفعتا هغه مذاکرات چه په انقره کښې دترکیې اودانگلیس د ارکان حرب دصاحب منصبانو په مینځ کښې جاری ؤ قطع شوه اودهغه په اثر انگلیسی مطبوعاتو پر ترکانو باندی تنقید و نه شروع کړل اوو ئې ویل چه ترکانو زمو نږ څخه ډېره اسلحه اخستی ده لیکن بیا هم په جنگ کښې زمونږ سره شرکت نه کوی . دترکیې جرائدو په ځواب کښې وویل چه هغه اسلحه نا کافی وه او ترکیه حاضره نه ده چه بې دخپلو منافعو څخه دنورو دمقاصدو دپاره جنگ ته داخل شی . بیاهم ددواړو مملکتو په روابطو کښې څه تغیر نه دی پیښ شوی - رؤف اوربای دترکیې لوی سفیر په لندن کښې چه پدی موقع کښې استعفا کړی وه ، دهغه په عوض روشن اشرف چه پخوا په رومانیا کښې سفیر ؤ مقرر او لندن ته اعزام شو . دواړه خواوې کوښښ کوی چه دا کشیدگی رفع شی - دروس او ترک روابط هم په عادی شکل سره دوام لری اودطهران او قاهری د کنفرانسو په اثر لکه چه ویلی شوی ؤ ، کوښښ شوی دی چه هغه روابط زیاتره اصلاح شی - په دی کال دسرطان په میاشت کښې د(دیار بکر) خط آهن چه دعراق اودترکیې په مینځ کښې قطاری روابط قائموی - دعصمت اینونو په ذریعه افتتاح شو - دبلی خوا ترکیې خپل روابط دالمان سره هم نسبتا تلې اود کال په پای کښې یو نوی قرارداددواړو مملکتو په مینځ کښې منعقد شو چه دهغه په قرار المان ترکیې ته د ملاریا دوائی او ترکیه المان ته افیون ور کوی . لیکن دنوی کال په سر کښې دانگریزانو او امریکائیانو دپیشنهاد په اثر ترکیې موافقه و کړه چه د ( کروم ) صادرات و جرمنی ته معطل شی مگر بیاهم دافیصله یوازی د کروم په معاملاتو پورې اړه لری اودترکیې اودجرمنی پر نورو قرار دادو باندی اثر نه کوی .

## عربی ممالك :-

په دی کال کښې په عربی ممالکو کښې یو نوی نهضت داتحاد دپاره پیداشوی دی چه محرك ئې عراق اومصر دی اودنورو عربی ملتو دخوا هم ښه استقبال شوی دی د جدی په میاشت کښې ددې اتحاد دطرح کولو دپاره دعراق اودمصر وزراؤ په قاهره کښې سره مذاکره کړی او بیا

هیئتونه د فلسطین او سوریې او لبنان او سعودي عربیې ته لیږلي شوي دي چه د دوی نظریات هم معلوم کړي لیکن تر اوسه پورې نتیجه معلومه نه ده د انګریز حکومت هم لکه چه معلومیږي دي تحریکاتو ته په مخالفت سره نه ګوري مګر کوم مستقیم اقدام هم نه کوي د عربستان سعودي روابطو د امریکا سره ترقي کړې ده او امریکا غواړي چه د عربستان د نفتو استخراج په خپل انحصار کښې راولي دا هم تر اوسه پورې فیصله شوې نه ده. د لبنان په بحران او فلسطین او یهودو په جګړه کښې نورو عربي ملتونو هم خپله همدردي د هغو عربو سره ښکاره کړې او په ممکنو طریقو سره ئې پر مربوطو مملکتو باندې اعتراضونه کړي دي.

## امریکائي مملکتونه :-

په دې کال کښې تقریبا ټول امریکائي مملکتونه د متحدینو سره په موافقت یو ځای شول او هغو مملکتو چه لا تر اوسه پورې ئې له محوره سره روابط درلوده هم ئې د محوري دولتو سره خپل روابط قطع کړل چه آخري ئې بولویا و (حمل) لیکن په ارجنتائن کښې چه هغه هم د محور سره روابط او خه دلچسپي درلوده د داو په میاشت په کښې یو انقلاب پېښ شو او (رامیرز) رئیس جمهور استعفا ته مجبور او (فارل) د حرب وزیر د مملکت اقتدار په لاس کښې واخست لیکن هر کله چه تر اوسه پورې د هغه مملکت خط مشي معلومه نه ده د انګلستان او امریکا حکومتونو اعلان وکړ چه فعلا د ارجنتائن نوی حکومت په رسمیت نه پیژني. د کال تر آخره پورې د ارجنتائن د نوي حکومت وضعیت واضح نه شو مګر په هغه مملکت کښې ځینې بې نظمي او جاسوسي تر اوسه دوام لري.

دا و، د دنیا مهم واقعات چه په اختصار سره وویل شوه - او هر کله چه جګړه خپلې فیصله کېدونکې دورې ته رسېدلې ده امید کوو چه تر آینده کال پورې به د دنیا د خونریزي خاتمه پیدا کړي او د ملتو روابط به په عادي طرز سره بیرته جاري شي.



## د امریکا په واقعاتو پوری مربوط



جنرال مارشال دامریکاد عمومی ارکان حرب رئیس چه ځومودی وشخه اروپاته راغلی او نوی محاذونه کتلی و .



کورډیل هل د امریکا د خارجه چارو وزیر او د مسکو په کنفرانس کښې د اتازونی نماینده



ادمیرال کنګ د امریکا بحری رئیس ارکان



جنرال ارنولد د امریکا فضائی رئیس ارکان .

## د نورو ممالکو په واقعاتو پوري مربوط



پاسی کی وی دفنلیند نماینده دصلح په مذاکراتو کښي له روسیی سره، چه په دغو مذاکراتو کښي ناکام شو .



مادام کولنتای دروسئی سفیر په ستوکهوم کښي او د فنلیند او روس دصلح دمذاکراتو مهم عامل



مارشال تیتو د یوگوسلا ویا دملیونو قاید . چه دمتحدینو د خواو پیژندل شو



فارل د ارجنتاین نوی رئیس جمهور چه د «رامیرز» په عوض مقرر شو .

## د اتحاد شوروی په واقعاتو پوری مربوط



مولوتوف د شوروی د خارجه چارو
کمیسار او ددغه مملکت نماینده
دمسکو په کنفرانس کښې



مارشال ستالین داتحاد شوروی دملی کمیسرانو
دشورا رئیس او دمدافعی کمیسر او مارشال
وروشیلوف داتحاد شوروی دمدافعې د کمیسر
معاون دطهران په کنفرانس کښې



کالینین دټول شوروی اتحاد داجرائیې دهیئت رئیس چه د (سوورروف) نښانونه شوروی
مارشالانو ته ورکوی. نښان اخستونکی: وروشیلوف، نور نفری له کینې خوا وښی خواته
شیرباکوف، زدانوف، شاپوش نیکوف، (رئیس ارکان حربیه) او بودیانی

## د فرانس او د ترکیئې په واقعاتو پورې مربوط



د کازابلانکا په کنفرانس کښې له کیڼې خوا نه ښی خواته ولاړ جنرال ژیرو او جنرال دوګول چه سره پخلا کېږي. ناست: روزولت او چرچل



مارشال فوزي چقمق د ترکیئې پخوانی رئیس ارکان حربچه په دې کال کښې متقاعد شو



فرصت نشته!

هوتل خدمتګار : څښي راوړم ؟

میلمانه : یو څه فرصت راکه ، چه زموږ خبري تمامې شي

تګار : یو فرصت خو نشته ، بل هر څه چه غواړې رابه ئې وړم .



عجب خواندن دی!

یو کاتب یوه بل ته : د ر ګه د حاضرۍ ناوخته شو

هابل : یوه ګړی ودریږه ، چه عجب خواندن دی که غیر حاضر شم په ارزی !! . . .



کم غوږ دی خوږیږی!

ملك : ډاکتر صاحب پر غوږ می درد دی !

ډاکتر : کم غوږ ؟ راسته که چپه ؟

ملك : راسته او چپه ئې نه پوهیږم ، خو هغه غوږ می درد وی چه د شپی د دیوال خواته وی .



نوي مشق!

وروره ! معاف می که ، نوی مشق کوم .

# ټوکې ټکالې





معافي غواړم ومې نه لید!

چاغ سړی راغی پر فنر والا کوچ کښېنوست ، هابل ډنګر

سړی ئې په هوا والوزاوه ویل :

معافي غواړم ، تا مې ونه لیدې ! !



پر اته بجې مې ویښ که!

بادار نوکر ته: سهار مې پر ۸ بجې له خوبه ویښ که !

نوکر : صاحب زه په ساعت نه پوهېږم ته یې خپله پر ۸ بجې

زنګ ووهه، چه له خوبه دې ویښ کړم



رسام : غواړم : چه یو د خندا کاریکاتور

انځور کړم

ملګري : ښه ، نو . . . خپله مبارکه څېره رسم کړه!!!




داخو ستا لاس دی

د سواد خوانی معلم : دغه څه شی دی؟ ویلای سی ؟

زده کوونکی : صاحب! داخو ستا لاس دی ! ! !

# فهرست مندرجات سالنامه

## ١٣٢٢

## الف : مضامین :



### ولایات وحکومات اعلی :



### اجراآت دوائر مملکتی :

# ددي کتاب غلطنامه

| مخ | کرښه | غلط | صحیح |
|---|---|---|---|
| ۱۰۸ | ۲۵ | نوی حرکت | نوی شراك |
| ۱۳۲ | ۲۹ | «ولکتس» | ولکش |
| ۱۳۹ | ۱۵ | پهلوان | پهلوانان |
| ۱۵۲ | ۸ | د محمدهوتاك | ودمحمدهوتاك |
| ۱۵٦ | ۱۲ | لهپشته | لهپښته |
| ۲۱۱ | ۱٤ | پر | پر |
| » | ۲۱ | درهمهم | درهم |
| ۲۱۳ | ۹ | کره | کله |
| » | ۱۳ | وکره | وکړ |
| » | ۱۵ | کښېوت | کښېووت |
| ۲۱٤ | ۹ | اېږداونه | رېږداونه |
| | ۱۳ | ویرهنسول | ویرجنسول |
| ۲۱۷ | ۲ | شعر د | شعرا د |
| » | ۲۵ | غوږه | غوره |
| ۲۲٤ | ٤ | پښتنو | پښتو |
| ۲۲٤ | ۲۵ | دوه | دده |
| ۲۲٦ | ٦ | خبرم | خبروم |
| ۲۲۷ | ۱۱ | خطات | خطاب |
| ۲۳۳ | ۲۰ | عناوین | عناوین ئي |
| ۲۳۵ | ۱ | دديوازيني | ديوازيني |
| ۲٤۹ | ۲۳ | څونان | څوانان |

| مخ | کرښه | غلط | صحیح |
|---|---|---|---|
| ۲۵۰ | ۱۱ | اوبی | اوبو |
| ۲۵٤ | ۱۷ | زدو | زرو |
| ۲۵٦ | ۲۰ | دله | دلی |
| ۲۵۷ | ٦ | اواویده | اوواویده |
| ۲۵۸ | پاورقی | اوازدی غوره | اوازاو غورده |
| ۲٦۲ | ۲۰ | کونه | کوښه |
| ۲٦۳ | ۲۱ | دشاوخوا | دشادخوا |
| ۲٦۵ | ۳ | تنده | تندهخره |
| ۲۷۰ | ٤ | دغرندو اومراو | غرندو اومراویو |
| ۲۷۱ | ۲۰ | پوره و | پورو |
| ۲۷۸ | ٤ | نوراورو سته | نورراوروسته |
| ۲۸۰ | ۱۲ | پهښتو کښې | پهتیو کښې |
| » | ۲۲ | دروېزه | ددرویزه |
| ۲۸۸ | » | دپښتو | دپښتو |
| » | ۲٤ | تېرهشو | تېرشو |
| ۲۸۹ | ٤ | علم او دنیا به | علم او فلسفی |
| ۲۹۰ | ۱۰ | وهیده | پوهېده |
| ۲۹۵ | ۲۷ | کتابی | کتاب |
| ۲۹۸ | ۱٦ | تیر ۱۰ | تیرا |

